

# ملي سرود

دا وطن افغانستـان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولـو کور دی
د پښتـون او هـزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هیـواد به تل ځلیږي
په سـینه کې د آسـیا به
نوم د حق مـو دی رهبـر

دا عـزت د هر افغان دی
هر بچی یې قهرمـان دی
د بـلـوڅـو د ازبکـو
د تـرکمنـو د تـاجکـو
پـامیریـان، نورسـتانیـان
هـم ایمـاق، هم پشه یان
لکه لمر پر شـنه آسـمان
لکـه زړه وي جـاویـدان
وایـو الله اکبر وایو الله اکبر

# د کتاب ځانګړتیاوې

---

مضمون: مدني زده کړې

مؤلفین: د تعلیمي نصاب د مدني زده کړو د څانګې علمي او مسلکي غړي

اډیټ کوونکي: د پښتو ژبې د اډیټ د څانګې علمي او مسلکي غړي

ټولګی: لسم

د متن ژبه: پښتو

انکشاف ورکوونکی: د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی ریاست

خپروونکی: د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هجري شمسي

د چاپ ځای: کابل

چاپخونه:

برېښنالیک پته: curriculum@moe.gov.af

---

## د پوهنې د وزیر پیغام

## اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تآسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې: د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپیڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام ا و د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

**د پوهنې وزیر**

**دکتور محمد میرویس بلخي**

# سرليکونه

## مدني زده کړې

# لومړی څپرکی

## فرهنګ

په دې څپرکي کې به په لاندې لو ستونو پوه شئ.

- فرهنګ څه شی دی؟
- د فرهنګ ځانګړتیاوې
- فرهنګ او ټولنه
- فرهنګي اړیکې

# د ښپرکي موخې

زده کوونکي به دې ښپرکي په پای کې:

له فرهنګ، کوچني فرهنګ، دودونو، ارزښتونو او ټولنې سره بلدتیا پیدا کړي.

- د فرهنګ غوره او عمده عناصر به توضېح کړای شي.
- فرهنګي ځانګړنې (خصوصیات) به توضیح کړای شي.
- کو چنی فرهنګ، فرهنګي تضادونه او فرهنګي یرغل به توضیح کړای شي.
- د ملي فرهنګ د ساتنې او د ټولنیزو قوانینو، قواعدو او ارزښتونو له منلو سره به لېوال شي.

# فرهنگ




## خبرې پرې وکړئ

څرنگه چې په ټولنیز ژوند کې لیدل کېږي:

- خلک خپل زامن د ښوونځي له تگ څخه د مخه جومات ته استوي چې دیني زده کړې، اسلامي اساسات زده کړي او په شپږ یا اوه کلنۍ کې یې په ښوونځي کې شاملوي.

- کله چې دوه ملگري سره مخامخ شي یو بل ته سلام اچوي، یو بل ته لاس ورکوي او د بېلېدو په وخت کې خدای په اماني کوي.

-کله چې ترافیکي اشاره سره شي، موټروان خپل موټر د پلیو د تېرېدو لپاره دروي.

-کله چې د یوې کورنۍ کوم غړی مړشي، د هغه خپل خپلوان گاونډیان کلیوال او د محلې خلک د هغه په جنازه کې شریکېږي، بیا یې خاوروته سپاري او بیا د هغه لپاره د دعا کولو مجلس جوړېږي. خپلوان ملگري آشنایان د مړي کورنۍ ته ډاډیینه ورکوي.

- کله چې د ډوډۍ خوراک پای ته ورسیږي، تر دسترخوان چاپېر خلک د دعا لاسونه پورته کوي او د خدای (جَلَّ جَلاَلُه) شکر پر ځای کوي.

دا یوازې د هغو کړو او رواجونو څو بېلگې دي چې په مجموع کې یو فرهنگ جوړوي.

**ستاسي په آند!**

**١- خلک ولې پورتني کارونه سرته رسوي؟**

**٢- که چیرې دغه یاد شوي کارونه ونه کړي، نو له کومو ستونزو سره به مخامخ شي؟**

انسان د پيدايښت له اولې ورځې څخه په زده کړه پيل کوي. کرار کرار د کورنۍ غړي پېژني، له ټولنيزو وړتياوو، پوهې او قواعدو سره اشنايي پيدا کوي او کله يې چې عمر زياتېږي له هغو سره لازيات اشناکېږي او په مختلفو ځايونو او بېلابېلو شرايطو کې داسې کړه کوي چې د ټولنې غوښتنه ده او بالاخره د خپلې ټولنې دود، دستور، کړه وړه او کلتور زده کوي.

انسان کله چې په ټولنه کې قدم کېږدي د يوې ژبې په زده کولو او د ټولنې له قواعدو او دودونو سره د بلدتيا په پايله کې کولای شي له انسانانو سره اړيکې وساتي. زده کړه وکړي، هغه نوروته ولېږدوي او خپلې کړنې همغږې کړي.

خلك د فرهنګ له لارې کولی شي هغه وړتياوې ترلاسه کړي چې د ژوندي پاتې کېدو او پايښت لپاره په مختلفو طبيعي چاپېريالونو کې لازمي دي، د بيلګې په توګه: څرنګه خوراکي توکي را ټول او پاخه کړي، څرنګه کالي واغوندي او د ځان لپاره کور جوړ کړي.

## د فرهنګ تعريف

په ژبنيو فرهنګونو کې د فرهنګ اصطلاح د دود، دستور، نظرياتو، هنر او د ژوند کولو د طريقې يوه پېچلې پديده ده چې د قومونو د تاريخي تجربو په لړکې يې تشکل موندلی دی.

له دې کبله د ټولنې ټولو مادي او معنوي لاسته راوړنو او شتمنيو ته فرهنګ ويل کېږي.

د فرهنګ د مفهوم د تحليل او تجزيې په پايله کې کولای شو څو ډوله عناصر تشخيص کړو چې هر يو يې د فرهنګ په جوړښت او تشکل کې رول او اغېز لري.

د فرهنګ غوره عناصر عبارت دي له: عقايدو (باورونو)، ارزښتونو، قواعدو، سمبولونو (نښو) او مادي او معنوي ميراثونو څخه.

### ۱- ارزښتونه

د لاندېنيو مطالبو په اړه بحث او خبرې وکړئ:

۱- ښوونکي، مور او پلارته درناوی کول،

۲- له کوچنيانو سره مرسته او پر هغو شفقت کول.

۳- ملګرو ته دروغ ويل او سپکاوی کول.

د دې کړنو د سرته رسولو او يا سرته نه رسولو په پايله کې تاسو ته څه احساس پيدا کېږي؟
ښوونکي، مور او پلار ته درناوی کول يو مثبت ارزښت دی. مور او پلار تاسو ته د ژوند ټولې آسانتياوې برابروي. يعنې خواړه، کالي د استوګنې ځای، د ښوونې او روزنې اسانتياوې او داسې نورې اړتياوې را پوره کوي، له دې کبله ضروري ده چې د هغوی درناوی وکړئ. ښوونکی موږ ته علم او د ژوند کولو وړتياوې را زده کوي. ښوونکی د زده کوونکو معنوي پلار دی.
د اسلام په مقدس دين کې دروغ ويل او خپل ملګري يا دوست ته سپکاوی کول لويه ګناه او بې ارزښته عمل دی چې انسان بايد له هغه څخه ډډه وکړي. ارزښت کېدای شي ډول ډول ريښې ولري. څرنګه چې د انسانانو ارزښتونه په لومړۍ درجه کې د هغوی له بيالوژيکي اړتياوو څخه سرچينه اخلي، نو انسان هغو پديدو ته امتياز او ارزښت ورکوي چې په ښـه ډول او زياته پيمانه وکولای شي د هغه اړتياوې پوره کړي. د مثال په توګه: کله چې انسان وږی وي هغه ته خواړه ارزښت لري او کله چې تږی وي هغه ته اوبه ارزښت لري. اسلام چې کومو کارونو ته انسانان هڅوي او يا د هغو کارونو دستور ورکوي، هغه کار ارزښت بلل کېږي او له هغو کارونو نه يې چې منع کوي هغه ته بې ارزښته کار ويل کېږي.
د ژوند په اوږدو کې وار په وار ځينې خاصې چارې د ټولنې ټولو او يا ډېرو غړوته مهمې ګڼل کېږي. د بيلګې په توګه:

- د يوه هېواد لپاره عزت او خپلواکي،
- د ملګرو او دوستانو تر منځ صداقت، صميميت اوورښتينولي،
- د مسلمانانو لپاره د خدای (جَلَّ جَلالُه)،عبادت او بنده ګي يو غوره ارزښت دی.

دوی د دې چارو په عملي کېدو سره خوښي ښرګندوي. که چېرې څوک دې چارو ته سپکاوی وکړي اويا د هغو د عملي کېدو مخه ونيسي، د ټولنې د وګړو له سخت غبرګون سره مخامخ کېږي. دې چارو ته چې د ټولنې لپاره اهميت لري ارزښت ويل کېږي. نو له دې امله فرهنګي

ارزښت داسې معيار او اندازه ده چې خلك د هغه په واسطه د يو شي يا يو شخص مطلوبيت، ښيګڼه او ښايست ارزوي او هغه د خپل ټولنيز ژوندانه لارښود ګڼي.

**۲- قواعد**

قواعد د ټولنپوهنې د علم له نظره هغه مقررات او طرزالعملونه دي چې ټولنه د هغو له لارې د خپلو غړو کړنو او چلندونو ته سمون ورکوي. يو وګړی په ټولنيز ژوند کې سره له دې چې له آزاديو او حقونو څخه برخمن دی، خود دې په څنګ کې له ځينو محدوديتونو سره هم مخامخ کېږي. څوک چې په ټولنه کې ژوند کوي نشي کولی په آزاده توګه او هر ډول يې چې خوښه وي عمل وکړي. هغه بايد د ټولنې د پاينښت لپاره په ځانګړو چارو لاس پورې کړي. که تاسې د فوټبال د ټيم لوبغاړي ياستئ، بايد د فوټبال د لوبې قواعد مراعات کړئ. تاسې دا آزادي نه لرئ چې له توپ څخه په هر ډول چې زړه مو غواړي کار واخلئ. له دې کبله هغه چارې چې يو وګړی يې د ټولنې ديو غړي په توګه سرته رسوي، قواعد ګڼل کېږي او که څېرته له هغو څخه سر غړونه وکړي سزاوړکول کېږي.

قواعد هغه مقررات دي چې خلکو ته ورښيي په ځانګړو حالاتو کې څرنګه عمل وکړي، څه ووايي او څرنګه فکر وکړي، قواعد زموږ د ټولو اعمالو لارښود دي.

ځينې قواعد د خلکو لپاره ډېر سپېڅلي دي او له هغو څخه سر غړونه د زغم وړ نه وي. ځينې قواعد تقريباً اختياري دي او د سر غړونې په صورت کې چا ته سزا نه ورکول کېږي. دا ډول قواعدو ته قومي طريقې يا عامه عرف ويل کېږي، هغه فرهنګي قواعد چې رسمي بڼه لري او له هغو څخه د سرغړونې په صورت کې د سزا وړانديز شوی دی قانون نومېږي.

د بيلګې په توګه: د مخدره توکو کرل، په ناجايزه توګه کارول او ليږدول رسمي سزا لري.

۳- **عقايد**: ديني عقيدې هم د ټولنيزو عقيدو يوه برخه بلل کېږي. زموږ خلك له اسلامي

عقایدو څخه پیروي کوي. اسلام داسې دین دی چې د انساني ژوندانه ټولې اړوندې برخې رانیسي. دا دین خورا غني او شتمن فرهنګ لري. دا فرهنګ د (وحې) پر بنسټ او له اسلامي تعلیماتو څخه سرچینه اخلي. په لنډه توګه عقیده او باور د ټولنې اعتقادي اوعام اصول دي چې د اجرا له ذمه وارۍ سره تړاو لري او د ټولنې لوړ ارزښتونه منعکسوي، لکه: د دیني اعتقاداتو اصول، د خدای جل جلاله عبادت کول، د لمانځه اداکول، روژه نیول او زکات ورکول.

**٤- سمبولونه (نښې)**: سمبولونه یا نښې د هغو حالاتو ښکارندوې دي چې انسان په ورځنی ژوندکې ورسره مخامخ کېږي. همدارنګه سمبولونه هر ډول فزیکي پدیدې (کلمه، څیز، غږ، احساس، بوي، حرکت، مزه) او داسې نوروته هم ویل کېږي چې خلك هغو ته ارزښت او معنا ورکوي. سمبول داسې څیز دی چې معنا څرګندوي، لکه: ملي بیرغ، ملي سرود، مجسمه او داسې نور. همدارنګه سمبول په یوه ټولنه کې د یو بنسټ شتون راښیي، د بېلګې په توګه: ملي بیرغ مورږ ته خپل دولت را په یادوي، ملي سرود د ټولو قومونو او د هېواد د ټولو اوسېدونکو د وحدت نښه او سمبول دی. د ښوونځي جامي (یونیفورم) مورږ ته دا راښیي چې د ښوونځي زده کوونکي یو. په ټولنه کې د سمبول او نښې اساسي نظام ژبه ده، ژبه په ټولنیز ژوندانه کې لوی ضرورت ګڼل کېږي او له هغې نه کار اخیستل د ټولنیز انسان له ځانګړنو څخه شمېرل کېږي.

همدارنګه ژبه د فرهنګ د عناصرو له ډلې څخه یو عنصر دی چې د فرهنګ د دوام او لېږد سبب کېږي، ژبه نه یوازې دا چې په خلکو کې د فرهنګ د متقابل غبرګون او د فرهنګ د دوام سبب کېږي، بلکې: د ټولنې د غړو د نظریا تو او فکرونو د رغونې سبب هم ګرځي.

فکر د ژبې له لارې په ژوند کې ښکاره او عملي کېږي. جوته ده چې د تمدن او شتمن فرهنګ پرمختګ، د یو قوم د افکارو او نظر یاتو په رغونې پورې اړه لري چې د ژبې له لارې ژوند ته لاره پیدا کوي. له ژبې پرته انسان نشي کولی کوم ډول چې اوس دی داسې واوسي.



## د لوست تکرار

۱- د فرهنګ اصطلاح د ژوند داسې طریقې ته ویل کېږي چې د یوې ټولنې غړي یې زده کوي، عملي کوي یې او له یوه نسل څخه یې بل نسل ته لېږدوي.

۲- ارزښت په ټولنه کې هغه دودیزې او رواج شوې مفکورې دي چې موږ ته راښیي چې کوم شی سم دی او کوم شی ناسم دی.

۳- قواعد هغه مقررات او هیلې دي چې د هغو په واسطه ټولنه د خپلو غړو کړنې او کړه وړه تنظیموي.

٤- عقیدې، هغه اعتقادي او هر اړخیز اصول دي چې د اجرا کیدو له ذمه واري سره په څنګ کې د ټولنې اوچت ارزښتونه منعکسوي.

٥ - سمبول هغه نښه ده چې معنا ځرګنده او روښانه کوي. لکه: ملي بیرغ، د سرې میاشتې نښان او داسې نور.

٦- ژبه د وینا او لیکنې د سمبولونو او نښو مجموعه ده چې د هغو یو ځای کیدل ( ترکیب) معناوې تولیدوي او د وګړو اړیکې سره ټینګوي.



## پوښتنې

۱- فرهنګ څه ته وایي؟

۲- ارزښت تعریف کړئ.

۳- د قواعدو نه مراعاتول د ټولنې د یوه غړي لپاره څه پایلې لرلی شي؟

٤- ستاسو په اند، انسان ژبه ځرنګه، چیرته او څه ډول زده کوي؟

٥- دغو شیانو لکه: بیرغ، د ښـوونځي یونیفورم، ملي سرود ته ولې سمبول ویلای شو؟



## کورنۍ دنده

د قواعدو، ارزښتونو او سمبول په اړه یو یو مثال ولیکئ او بیا یې په ټولګي کې ولولئ.

# د فرهنګ ځانګړتیاوې



## خبرې پرې وکړئ!

که مو پام کړی وي په کومه سیمه یا ښار کې چې تاسې ژوند کوئ، دود او دستور یې د بل ښار او یا هېواد سره تو پیر لري ستاسې په اند:

- په دود او دستور کې د دې توپیرونو علت څه شی دی؟
- آیا کولی شو یو فرهنګ له بل فرهنګ نه غوره وبولو؟
- ولې د فرهنګونو تر منځ د ښه والي او بدوالي معیار نشته؟

د پورتنیو پوښتنو ځوابونه به په دې لوست کې ومومئ.

**۱- فرهنګ یوازې د انسان ځانګړنه ده**: خدای جل جلاله انسان ته عقل او شعور ورکړی دی او په زیاته کچه په هغې پوهې چې په ټولنیز ژوند کې یې زده کوي عمل کوي. په داسې حال کې چې حیوانات په ارثي توګه عمل کوي او د هغوی د زده کړې ځواک کم دی.

د انسانانو د ژوندانه په اوږدوکې داسې عادي او ساده خیزونه چې نور ژوندي موجودات هم هغو ته اړ دي، د فرهنګ په چوکاټ کې داخلیږي. د بیلګې په توګه: انسان د نورو موجوداتو په توپیر که چېرته وږی هم وي بیا نو په خپل ټاکلي وخت خواړه خوري، خو داسې هم پېښیږي چې کله بیا وږی یا تږی هم نه وي، نو خوراک او څښناک کوي. وګړي وزرونه نه لري چې والوځي، خو هوایي جهاز جوړوي. ګړندی تللي نشي، خو موټر جوړوي. کولی شي درې وخته خواړه وخوري او یا په ځانګړو آدابو سره جومات ته ننوځي. پرنجیدل یو طبیعي عمل دی، خو له پرنجیدو وروسته انسانان مختلف غبرګونونه څرګندوي چې له بېلو بېلو فرهنګونو څخه استازیتوب کوي. یو وایي وبخښئ، بل وایي (الحمدالله) او په ځواب کې یَرْحَمُكَ الله وایي او یا هم دعا کوي.

## ۲- فرهنگ د زمانې په اوږدو کې شتمن کېږي، لوړېږي او وده کوي

څومره چې پر یو قوم ډېر وخت تیر شوی وي او ډېره موقع او فرصت یې لاس ته راوړی وي، نو کولای شي په زیاته پیمانه معنوي پانګه زیرمه کړي او ښه دودونه د بدو دودونو پرځای راولي. فرهنګي پانګه هغه مهال لاس ته راځي چې په یوه ټاکلي وخت کې هغه څه چې په فرهنګ کې اضافه کېږي له هغه څه نه زیات وي کوم چې له منځه ځي، نو له دې کبله فرهنګ ښه او غوره اخلاقي موازین او مذهبي عقیدې، دود او دستور اخلي او ځان ته پرېږ وده ورکوي. فرهنګ یوه ژوندۍ پدیده ده، له دې کبله باید متحرکه او خوځنده وي، د فرهنګ دریدل د هغه مرګ دی.

## ۳- فرهنګ یوه نسبي(نژادي) پدیده ده

هیڅ ګروپ او یا قوم دا نه مني چې د هغو فرهنګ ټیټ او بد دی. ټول فرهنګونه د کورني نظام د یوې ځانګړې ژبې او شکل درلودونکي دي. د انسان د کړنو سموالی او ناسموالی، ښه والی او بد والی په بشپړه توګه د همغې ټولنې د مروج فرهنګ، دود او دستور سره تړاو لري. په یوه ټولنه کې رواج شوی عرف او عادت کیدای شي بد د ښه په ښه وښیي او هغه څه چې یوه ورځ منلي شوي وو، کیدای شي یوه ورځ نه منونکي وبلل شي. همدارنګه هغه شی چې په ټولنه کې ښه عمل بریښي په بله ټولنه کې کېدای شي تېروتنه وبلل شي.

## ۴- هر فرهنګ د لېږد او زده کړې وړ دی

هره ټولنه یو فرهنګ لري او د یو فرهنګي میراث په توګه له یوه نسل نه بل نسل ته لېږدول کېږي او موږ ته دا رازده کوي چې څرنګه هغه مسایل چې موږ له هغو سره مخامخ کېږو، حل کړو، څرنګه خپلې اړتیاوې په ښه توګه پوره او په ښه ډول ژوند وکړو. دا یو فرهنګ دی چې موږ ته له تېرونسلونوڅخه راپاتې دی په دې فرهنګ کې دیني بنسټونه، ژبه، ارزښتونه، عقیدې، قوانین، رواجونه، علوم او صنایع شامل دي.

## ۵- فرهنګ عام خو ځانګړی هم دی

فرهنګ د انسان د مادي او معنوي لاس ته راوړنو په توګه، په انساني ټولنه کې عام دی. په ټولو انساني ټولنو کې ( وړوکې او که لویه، ساده او که پیچلې وي) یو عمومي او ګډ فرهنګ لیدل کېږي. خو د فرهنګ له عامتوب سره سره هره ټولنیزه ډله د اقتصادي بنې، خپلوۍ، مقرراتو، دیني مناسکو، ژبې، ادبیاتو او هنر په برخه کې خپلې ځانګړې تګلارې لري او هېڅ داسې

فرهنګي پدیدې او شرایط نشته چې په دوو قومونو، دوو ټولنو او یا دوو ټولنیزو ډلو کې یو بل ته ورته والی ولري. په بل عبارت: د هرې ټولنې فرهنګ د همغې ټولنې پیداوار دی یعنې یوازې په همغې ټولنې پورې ځانګړی دی.

## ۶- فرهنګ ثابت خو بدلېدونکی هم دی

ټولې ټولنیزې او غیر ټولنیزې پدیدې اختراعات، تجربې، مهاجرتونه او داسې نور د وخت او ځای له غوښتنې سره سم بدلون او وده کوي. کله چې فرهنګ په یوه ټولنه کې زده کېږي او د منلو وړ کېږي، ثبات او دوام پیدا کوي. په حقیقت کې هغه عوامل چې فرهنګ ته بدلون ورکوي، که قوي او ځواکمن نه وي د ټولنې غړي د فرهنګ د بدلون پر وړاندې مخالفت او مقاومت کوي.

د بیلګې په توګه: په هر فرهنګ کې د جامو اغوستلو ځانګړې طریقه موجوده ده. یوازې هغه مهال دا طریقه او رواج بدلون مومي چې د نوي فرهنګ (فرهنګي نوښت) تر اغیز لاندې راشي او د ټولنې د اکثریت خلکو د منښې وړ وګرځي. خو دا بدلون په فرهنګي ساحو کې دومره کرار او ورو دی چې په ورځنیو لیدنو کتنو کې نه احساسیږي او نږدې ثابت معلومیږي.

## ۷- د فرهنګ منل اجباري، خو په عین حال کې اختیاري هم دی

انسان د ژوند له لومړۍ ورځې څخه خوړل، کښېناستل، خبرې کول، اغوستل او بالاخره د ارزښتونو پیژندنه که وغواړي که ونه غواړي زده کوي. د دې لپاره چې یو وګړی وکولی شي په ټولنه کې ژوند وکړي هغه اړ دی چې ژبه، دین، مذهب، د خوړلو طریقه، د جامو اغوستل، دود او دستور، رسم او رواج زده کړي. لنډه دا چې ټولې هغه کړنې او فکرونه زده کړي چې ټولنې، توکم، قشر، ټولنیزې ډلې او بالاخره ښار او سیمې ته چې په هغه کې ژوند او وده کوي، د منلو وړ وي. نو له همدې کبله وایو چې د فرهنګ زده کړه اجباري او له فشار سره یو ځای ده، خو انسان نظر په هغو جسماني فکري، رواني، علمي او ټولنیزو ځانګړتیاوو چې لري یې، د پوهې په هغه چوکاټ کې چې په ټولنه کې یې زده کوي نه پاتې کېږي او اختیار لري چې پر مخ لاړ شي اوخپل ځان د اختیار حریم ته ورسوي. فرد د (جبر) په وړاندې اختیار هم لري، که نه نو دا ټول اختراعات او کشفیات به نه کیدل او دا ټول پر مختګ به ناممکن و. دا ټول د دې ښکارندوی دي چې انسان د اختیارلرونکی دی او د انتخاب قدرت لري. کولای شي چې خپل ځان د اجبار له ولکې څخه وباسي.

د عام فرهنګ نور ډولونه هم د پوهانو له خوا تشخیص شوي دي چې له دې ډلې کولی شو له هنر، بدني سینګار، لوبو، تحفې ورکولو، ټوکو او روغتیایي قواعدو نومونه واخلو.فرهنګي ځانګړ تیاوې د یوې ټولنې د افرادو د کړو وړو په ځانګړتیاوو غوڅ اغیز اچوي. د هرې ټولنې وګړي په فرهنګي چوکاټ کې د ټولنې له فرهنګي ځانګړتیاوو څخه سر غړونه نه کوي. زیات خلك د خپلې ټولنې له فرهنګ څخه پیروي کوي، ځکه په مستقیمه او غیرمستقیمه توګه یې د هغه زده کړه کړې ده. هغوی ممکن له دې لارې له یوازیتوب نه خلاصون پیدا کړي او له خپلې ډلې سره یو ځای شي، ځکه چې په ټولنیز ژوند کې نظم او سمون ګټور بولي.



## د لوست تکرار

•فرهنګ یو ټولنیزه او په ټولنیزو اړیکو پورې تړلې پدیده ده. د ټولنپوهنې له نظره هر څوك فرهنګ لري او داسې انسان نشته چې فرهنګ ونه لري.

•......................................................................................................

•......................................................................................................

•......................................................................................................

•......................................................................................................



## پوښتنې

۱- آیا داسې فرهنګونه شته چې نسبت بل فرهنګ ته ښه او اوچت وي؟

۲- د فرهنګ عامې ځانګړتیاوې کومې دي؟له بیلګې سره یې وواياست.

۳- ولې وایو چې فرهنګ یوازې د انسان ځانګړنه ده؟

٤- آیا داسې انسان پیژنئ چې فرهنګ ونه لري؟

۵- لاندې مطالب مطا لعه کړئ، سمې جملې په(√) علامې سره او غلطې جملې په (×)علامې سره په نښه کړئ.

الف- د انسان او ژویو ترمنځ اساسي او اصلي توپیر د انسان د فرهنګ لرل دي. ( )

ب- فرهنګ نسبي نه دی. ( )

ج- فرهنګ د زمانې په اوږدو کې غني کېږي، لوړیږي او وده کوي. ( )



## کورنۍ دنده

زموږ د هېواد او بهرنیو هېوادونو فرهنګي ځانګړتیاوې سره پرتله او د څلورو مثالونو په ورکو لوسره یې د ټولګي پر وړاندې بیان کړئ.

# فرهنګ او ټولنه



## خبرې پرې وکړئ

څرنګه چې په تېرو درسونو کې مو زده کړل چې انسان په ټولنه کې زیږي، په ټولنه کې وده کوي، زده کړه کوي او زده کړه ورکوي. د یو لړ قوانینو اومقرراتو په منلو سره خپل ژوند ته ادامه ورکوي چې د یو لړ فرهنګي عناصرو د پیدایښت لامل ګرځي. ستاسې په آند:

- فرهنګ د ټولنیز ژوند په کومو برخو پورې تړاو لري؟
- که چیرته ټولنه مو جوده نه وي، نو فرهنګي عناصر به څنګه دوام پیدا کړي؟

د انسان، ټولنې او فرهنګ اصطلاحات، سره له دې چې د مفهوم له لحاظه سره بېلولای شو، خو په حقیقت کې د دوی تر منځه ډېرې نژدې او عیني اړیکي موجودې دي. هېڅ فرهنګ له ټولنې پرته نشته او هېڅ ټولنه نشته چې فرهنګ ونه لري. **ټولنه**، هغه منظمې او متقابلې اړیکې دي چې انسانان یې په خپلو کې سره لري. **فرهنګ** د انسانانو د ژوند لاروچارو، ارزښتونو، دود، دستور او د دوی له خوا د تولید شویو توکو په معنا دی. د دې لپاره چې فرهنګ ښه وپېژنو باید د فرهنګ مخکنیو او اوسنیو اړخونو ته پام وکړو.

- د فرهنګ مخکني اړخونه رسم او رواج، دودونه او سنتونه دي.
- د فرهنګ اوسني اړ خونه موږ ته نوی فرهنګ او د هغه ځانګړ تیاوې چې نن لیدل کېږي، راپیژني. خدای جل جلاله دا د خاورو نړۍ پیدا کړه او انسان چې په دې نړۍ کې ژوند کوي، د خدای جل جلاله په حکم یې له هېڅ نه هستۍ ته پل کیښود. او د ځمکې په سر له خپرېدو نه وروسته یې په ژوند کولو پیل وکړ. بیا دې ډلو په خپلو کې ځانګړي رواجونه او دودونه

وموندل. نن مهال د خلکو او هېوادونو د پراختیا له امله نوي رواجونه، دودونه او فرهنگونه لیدل کېږي.
د فرهنگ اصطلاح، په عامو خبرو اترو کې معمولاً کره او ظریفو هنري او ادبي سلیقو ته اشاره ده، خو د ټولنپوهنې له نظره دا اصطلاح ډېره پراخه او په دې معنا ده چې هر څوک په ټولنه کې ژوند کوي، فرهنگ لري. ټول شیان او نعمتونه چې خدای جل جلاله د ځمکې پرمخ د خپلو بنده گانو د گټې اخیستو لپاره پیدا کړي دي، په فرهنگ کې ورگډ دي چې انسانان په هغه کې برخه لري. دا شیان په دوه ډوله دي: مادي شیان اومعنوي شیان چې فرهنگ هم پر همدې بنسټ په دوو برخو، مادي او معنوي فرهنگ وېشل کېږي:
- مادي فرهنگ هغه مادي شیان دي چې خدای جل جلاله پیدا کړي، انسانان ترې گټه اخلي او له هغو څخه مصنوعات او د خپلو اړتیاو د پوره کولو لپاره وسایل جوړوي. لکه: ماشینونه، جامې، مدرسې، کارخانې، ښارونه، کتابونه، فضایي بېړۍ، مجسمې او داسې نور.
- په معنوي فرهنگ کې ژبې، فکرونه، عقاید، قواعد، دود، رسم اورواج، کیسې، وړتیاوې او سیاسي نظامونه شامل دي.
ټولنه د خلکو هغې ډلې ته ویل کېږي چې یوه اوږده موده یې یوځای ژوند کړی وي، یوه ټاکلې سیمه یې په خپله ولکه کې راوستې وي او په پایله کې په دې توانېدلي وي چې له نورو ډلو څخه په توپیر سره یې خپلو ځانونو ته د یو ټولنیز واحد په توگه سمون ورکړی وي.
که چیرې داسې وبولو چې ټولنه د نسبتاً تل پاتې ډلې چې له ښځو، نارینوو او کوچنیانو چې د خپلو اړتیاو د لېږې کولو لپاره یو له بل سره مرسته کوي جوړه شوې وي، نو فرهنگ هماغه د گډو ارزښتونو او وسایلو مجموعه ده چې د اړتیاو د لیرې کولو لپاره جوړېږي او له یوه نسل نه بل نسل ته انتقالېږي. هېڅ ټولنه له خپل ځانگړي فرهنگ نه پرته شتون نه لري. ټولنه له هغو خلکو نه جوړه ده چې په یوه فرهنگ کې برخه ولري او دا روښانه ده چې له فرهنگ نه  دگټې اخیستلو سره جوخت په هغه کې فعال رول هم لوبوي. فرهنگ د یوې ډلې د ژوند کولو طریقه ده او ټولنه د خلکو هغه منظمه  ټولگه ده چې د ژوند کولو منظمه طریقه او شیوه لري. په ساده ژبه ویلای شو چې ټولنه یعنې خلك او فرهنگ یعنې د خلکو د کړو وړو طریقه او روش.
د دې ځانگړنو له څرگندونې نه دا پایله لاس ته راځي چې د ټولنې او فرهنگ بېلېدل ممکن نه دي. ځکه چې ټولنه به له فرهنگ پرته د بې هویته خلکو مجموعه وي. سمه ده چې ټولنه د فرهنگ د ودې زانگو گڼل کېږي، خو  د گډ ژوندانه او ټولنیزو اړیکو مفهوم او معنا د فرهنگ په واسطه لاس ته راځي. دا کار لږ تر لږه په ذهني توگه د امکان وړ دی چې فرهنگ له ټولنې

نه جدا کړو، فرهنګ د ټولنې د ژوند له طریقې نه تشکیل شوی دی او ټولنه له هغو خلکو نه جوړه ده، چې له یو بل سره متقابل عمل لري چې په یوه فرهنګ کې سره شریک دي. خو دا دوه مفهومه ډېرې نږدې اړیکي لري. څرنګه چې یو فرهنګ له ټولنې پرته چې دا فرهنګ ساتي وجود نشي درلودي او له فرهنګ څخه پرته فرد او انساني ټولنه نه شي کولی ژوند ته دوام ورکړي.

## خبرې پرې وکړئ

### ستاسې په اند فرهنګ ته د نړۍ د وګړو د اړتیا علت څه دی؟

انسانان په دې دلیل فرهنګي نظامونه منځ ته راولي چې هغو ته اړتیا لري. نظامونه پراختیا مومي ترڅو متقابل عمل او سمون ورکول اسانه کړي. همدا اړتیا او د هغو بدلون یو فرهنګ، دود، ارزښت او رواجونه تشکیلوي چې په ټولنو کې د نظم او سمون سبب ګرځي، د هغو ټولګیو چې دا فرهنګ یې منلی دی د ودې، پیوستون او ټینګو اړیکو لامل ګرځي. هغه ټولنې چې په خپل حرکت او ودې کې په همدې فرهنګ او عقایدو ولاړې وي، د ټولو د منلو وړ دي د یو او بل ټولنیزو اړتیاو په پوره کولو لاس پورې کوي. پوه انسانان د خپلې ورتیا او پوهې له برکته په دې بریالي شول چې غرونه، درې، ځنګلونه، ساحلي او قطبي سیمې په خپله ولکه کې راولي، ځکه چې دوی تل په دې سیمه کې د ژوند لپاره د محیط د اماده کولو تخصصي وسایل جوړوي او اماده کوي.

ستاسې په آند کوم عوامل د بشر د بې سارو کامیابیو لامل ګرځېدلي دي؟

١- د انسانانو فکر او نوښت،

٢- د انسان مادي او معنوي اړتیاوې،

٣ - فرهنګ

ځواب په یوه کلمه کې، فرهنګ دی. زموږ ګډ فرهنګ هماغه دی چې ټولنیز ژوند مو جوړوي. که چېرته فرهنګ له یوه نسل نه بل نسل ته نه انتقالېدلای نو هر نوی نسل به مجبور و چې د ژوند د ډېرو ساده مسألو حل له سره پیل کړي. همدارنګه اړ به و چې د کورنۍ نظام له سره جوړ کړي، ژبه رامنځته کړي اور کشف کړي، ماشینونه جوړ کړي او داسې نور. زموږ ټولنه هم لکه نورې ټولنې داسې فرهنګ لري چې له یوه نسل نه بل نسل ته لېږدول شوی دی. د فرهنګ، تکنالوژي، مذهبي بنسټونه، ژبه، ارزښتونه، عقاید او زموږ دودونه او سنتونه دي چې د رسمي او غیر رسمي ټولنو له لارې انتقالیږي. ټولنه د پر مختګ په جریان کې نوې اړتیاوې پیدا کوي.

ټولنه د دې اړتیاوو د پوره کولو لپاره نوي وسایل جوړوي چې د نویو وسایلو او عناصرو د پیدا کېدو او د پخوانیو عناصرو د دوام په پایله کې په دوامداره توګه اضافي عناصر د ټولنې په فرهنګ ور زیاتیږي او ستره فرهنګي پانګه جوړوي. تاریخ راښیي چې ټولنه د اقتصادي ودې په هره مرحله کې یوه ساه(روح) لري چې هغه فرهنګ دی . که چیرته ټولنه یو جسم وبولو فرهنګ د هغه ساه ګڼل کیږي. څرنګه چې زموږ ټولنه یوه اسلامي ټولنه ده او د یوې ټولنې فرهنګ هغه وخت د یوې ټولنې د ساه مقام ته رسیدای شي چې په هغې ټولنې حاکمه فضا یوه اسلامي فضا وي، خلك له اسلامي اخلاقو سره عادت شوې وي، له دیني قواعدو او مقرراتو سره آشنا او په اسلامي آدابو مؤدب شوي وي. په دې معنا چې په ټولنه کې اسلامي فرهنګ پلی شوی وي.

### د لوست تکرار

- هیڅ ټولنه د هغه له ځانګړي فرهنګ پرته شتون نه لري.(۱)
- ..................................................................................................
- ..................................................................................................
- ..................................................................................................
- ..................................................................................................

### پوښتنې

۱- ټولنه تعریف کړئ.
۲- څه فکر کوئ، داسې ټولنه شته چې فرهنګ ونه لري؟
۳- څرنګه چې فرهنګ له یو نسل نه بل نسل ته لیږدي معنا یې څه ده؟ یو مثال راوړئ.
٤- د فرهنګ پخوانی او اوسنی برخې څه توپیر لري؟
۵- د مادي فرهنګ څو بیلګې ولیکئ.
٦- د معنوي فرهنګ څو بیلګې ولیکئ.

### کورنۍ دنده

د ټولنې او فرهنګ تر منځ اړیکې په لاندیني جدول کې په لنډه توګه ولیکئ.

| ټولنه | فرهنګ |
|---|---|
| | |

(۱)-ګران زده کوونکي دې د دې لوست وروسته د بناغلي ښوونکي په مرسته د لوست لنډیز پخپله ولیکي.

# کوچني فرهنگونه

په تېر لوست کې مو ولوستل چې کله انسانانو د ځمکې په مختلفو برخو کې ژوند پیل کړ، دې ډلو ځانګړي دودونه او رواجونه منځ ته راوړل چې یو تر بله یې په دودونو او رواجونو کې توپیر درلود. دا توپیر په نورو ټولنو او همدارنګه په خپله ټو لنه کې هم لیدل کېده. څرنګه چې نن ورځ لیدل کېږي، د خلکو او هېوادونو له زیاتوالي سره جوخت، نوي دودونه، رواجونه او آداب را څرګند شول. د کوچنیو فرهنګونو په لوست کې به دا موضوع تاسې ته روښانه شي.



## پرتله یې کړئ

د کور غړي او یا مو ټولګیوال په نظر کې ونیسئ،

د هغوی څو ګډې ځانګړتیاوې او توپیرونه وشمېرئ،

اوس د لویو ډلو په باره کې فکر وکړئ. د یوه ستر هېواد، لکه: افغانستان د مختلفو سیمو خلک په نظر کې ونیسئ، د هغوی د څو ګډو ځانګړتیاوو نمونې او همدارنګه د هغوی د توپیرونو نمونې څرګندې کړئ.

کوچنی فرهنګ، په لوی ګروپ کې د کوچني ګروپ د ژوند طریقې ته وایي. د کوچنۍ ډلې د ژوند طریقه له یوه اړخه له اړوندې ډلې یا ګروپ سره یو ډول ده او له بلې خوا ورسره توپیر لري.کوچنی فرهنګ د لوی فرهنګ زیاتره طریقې مني. خو په هغو برخو کې چې په قواعدو، مادي چارو او د کار کولو په طریقې پورې اړه ولري، دا ډله د هغو په هکله مختلف نظرونه لري.له دې جملې نه کولای شو د سیمه ییز، مذهبي، سنتي، قومي، کاري، توکمي، قبیلوي، محلي اوسیمه ییزو ګروپونو، حرفوي ډلو، د خپلوۍ، مذهبي لړکیو او بالاخره د ټولنې مختلف قشرونه هر یو یې کوچنی اوځانګړی فرهنګ لري چې د همغې ځانګړې ټولنیزې ډلې پورې تړاو لري. په عامه توګه، په هر ګروپ کې د فرهنګ ځانګړی شکل اوهویت موجود دی چې

کوچنی فرهنگ نو میږي. په دې توګه، کوچنی فرهنګ د یوې ډلې هغو عقایدو، قواعدو، آدابو او دودونو ته ویل کېږي چې د ټولې ټولنې له عقایدو، قواعدو او دودونو سره توپیر لري. په بل عبارت، د کوچني فرهنګ مفهوم هغو فرهنګي نمونو ته ویل کېږي چې له ټولې جامعې نه یوه برخه جلا کوي.

کوچنی فرهنګ د یو هېواد د یوې ښاري اویا د کلیوالي ټولنې په ټولنیزو طبقاتو او قشرونو کې هم لیدل کېږي، د بېلګې په توګه: که ژبه په نظر کې ونیسو، دا سمه ده چې هره ټولنه یوه معینه ژبه لري چې د نورو ټولنو له ژبې سره توپیر لري، خو په آساني سره پو هیدای شو چې کو چنیان، تنکي ځوانان، سپین ږیري، د دولت کار کوونکي، کارګران، شتمن، د ښار د سویلي سیمې اوسېدونکي، د ښار د شمالي سیمې اوسېدونکي... هر یو یې د خپلو ځانګړو کلمو، اشارو، متلونو، ویناوو او بالاخره د مخصوصو ادبیاتو او ژبو لرونکي دي.

انسانان ځي او راځي، خو ټولنه پخپل ځای ولاړه ده. انسان په هره ټولنه کې د رواج شوي او منل شوي فرهنګ له لارې له نورو سره د نژدیوالي او پیوستون احساس کوي او له نورو ټولنو څخه ځان جدا او متفاوت بولي.

په یوه ټولنه کې د کوچنیو فرهنګونو تر منځ او یا د مختلفو ټولنو ترمنځ فرهنګي تضادونه چې د ژوند کولو په طریقې کې او د ټولنې د وګړو د کړنو د لارو چارو له توپیرونو نه منځ ته راځي، یو طبیعي کار دی.

په ځینو چارو کې کوچني فرهنګونه یوازې له اصلي فرهنګ نه توپیر نه لري، بلکې د ټولنیزو ارزښتونو او دودونو پر خلاف هم عمل کوي. ټولنپوهان دا ډول کوچني فرهنګونه د فرهنګ ضد بولي.

خو باید په نظر کې ولرو چې د کوچنیو فرهنګونو د خلکو په باره کې قضاوت یوه ستونزمنه، پیچلې او د ځیرنې وړ موضوع ده. موږ نشو کولای چې خلکو ته یوازې د یوې ګډې ځانګړتیا له امله په یوه فرهنګي مقوله کې ځای ورکړو.

د بیلګې په توګه: که چېرته د قومیت مسئله د یو کوچني فرهنګ د هویت معیار وټاکو، دا به سمه نه وي. نن ورځ په نړۍ کې میلیونونه خلك د نژاد او فرهنګ له نظره سره ګډ شوي دي او نشو کولای په آساني سره هغوی د سپین، تور، افریقایي او مکزیکي په مقوله کې راولو.

د اهمیت وړ ټکی دا دی چې یو ځانګړی خصوصیت نه شي کولای د خلکو د کوچني فرهنګ ټاکونکی وګرځي. ټولنپوهانو چې کوم ګروپونه د کوچني فرهنګ جوړوونکي بللي دي، لاندینی ځانګړتیاوې یې په ګوته کړې دي:

۱- ژبه، ارزښتونه، دودونه او ګډ قلمرو( سرحد) لري.
۲- د دې ډلې د غړو متقابل عمل د نورو ګروپونو په پرتله د خپل ګروپ سره ډېر نژدې دی.
۳- د ټولو کوچنيو فرهنګونو ګډې ځانګړتياوې دا دي چې د هغوی غړی په خپله خوښه يا د ځينو عواملو له کبله ځان د ټولنې له نورو غړو نه ګوښی او جلا بولي. د دې جلاوالي دليل هر څه چې وي ( په ځينو برخو کې) د ټولنې د اصلي فرهنګ له لارې څخه جلا حرکت کوي.
په ځينو ټولنو، په ځانګړې توګه په کليو کې چې هغوی د خپلوۍ او توکم په ډلو کې او يا له يو بل نه ګوښی ژوند کوي، دا توپير او تنوع ځينې وختونه د دې ډلو تر منځ د تاوتريخوالي، د اړيکو خرابوالي او کله هم د جګړې او اخ وډب لامل ګرځي.
**فعاليت**: د لاندينيو پوښتنو په اړه بحث وکړئ:
۱- ستاسو په اند د يو فرهنګ نه منل او د هغه د لاسته راوړنو څخه سترګې پټول په ټولنه کې څه پايلې لري؟
۲- ښوونه او روزنه او په ځانګړې توګه د ښوونځي چاپيريال د مختلفو فرهنګونو د سمې پيژندنې د ايجادولو او رواجولو په برخه کې څه رول لوبوي؟
له يوه فرهنګ نه انکار کول او د هغه په لاسته راوړنو سترګې پټول په هغه فرهنګ پورې د تړلو وګړو د شخصيت د يوې برخې نه منل دي. هر فرهنګ د خپلو غړو شخصيت څرګندوي. کله چې د يوې ډلې په فرهنګ سترګې پټې شي. په حقيقت کې د هغه فرهنګ د غړو ځاني شتون او يووالی له ګواښ سره مخامخ کيږي. چې په پايله کې د دې ډلو تر منځ د يو بل په باره کې غلط او نا سم نظريات او عقيدې راپيدا کوي.
ښوونه او روزنه داسې نظام دی چې په هغه کې د فرهنګونو ژوند چې په حقيقت کې د ټولنو ستر او با ارزښته ميراث دی ساتل شوی او نورهم شتمن کيږي. د ښوونځي ماحول کېدای شي د مختلفو فرهنګونو د سمې پيژندنې د ايجادولو او رواجولو په برخه کې خورا ښه رول ولوبوي.
کله چې ټول وګړي د مختلفو فرهنګونو په درلودلو سره د ښوونې او روزنې داسې يو واحد نظام مني چې دوی په ټولنه کې د ژوند کولو لپاره چمتو کوي. نو دا وګړي په داسې نظام کې روزنه وينې چې د ارواحي امنيت نه برخمن وي، داسې امنيت درلودل د وګړو پر رغونه اغيز کوي.
د داسې ټولنې وګړي چې په هغې کې هر څوک د ارزښت احساس وکړي او د هويت لرونکي وي، نه يوازې له خپلې ډلې سره، بلکې د نورو فرهنګونو سره هم د نژديوالي او پيوستون احساس کوي.

## انحرافي کوچني فرهنگونه



دا مفهوم د هغو ډلو لپاره کارېږي چې غړي يې له هغو دودونو او ارزښتونو څخه پيروي کوي چې د ټولنې عام قوانين تر پښو لاندې کوي. دا ډول ډلې او گروپونه تقريباً په ټولو ټولنو کې ليدل کېږي، د بيلگې په توگه: د مخدره توکو د قاچاق باندونه، د غلو او لارې شوکوونکو باندونه او داسې نور.

### د لوست تکرار

• ........................................................................................

• ........................................................................................

• ........................................................................................

• ........................................................................................

• ........................................................................................

• ........................................................................................

### پوښتنې

١- کوچنی فرهنگ څه شی دی؟

٢- د فرهنگي تضاد سرچينه او منشا څه شی ده؟

٣- په ټولنه کې د يوه فرهنگ نه منل او د هغه د لاسته راوړنو څخه سترگې پټول څه پايلې لري؟

٣- د مختلفو قومونو دگډ فرهنگ په باره کې خپل نظر وليکئ.

### کورنی دنده

په کومه سيمه کې چې ژوند کوئ، د کوچني فرهنگ څو نمونې وليکئ او په ټولگي کې يې ولولئ.

# فرهنګي اړیکې



## خبرې پرې وکړئ

څرنګه چې په تېرو لوستونو کې موولوستل، انسان یو ټولنیز موجود دی، انسان د دې لپاره چې په ټولنه کې ژوند وکولای شي، اړدی چې د ټولنې فرهنګ زده کړي. له دې کبله له نورو سره اړیکې د ده لپاره ضروري دي. دې مطلب ته په پام سره د لاندینیو پوښتنو په باره کې خبرې سره وکړئ.

۱-فرهنګي اړیکې څه ته وایي؟

۲- د ټولنې د وګړو تر منځه د اړیکو نه درلودل به څه پایلې ولري؟

۳- اړیکې او تماسونه په ټولنیز ژوند کې څه رول او اهمیت لري؟

اړیکې هغه جریان دی چې یو شخص بل شخص یا ډله د یوې موضوع په هکله له خپلو احساساتو څخه خبروي. اړیکې له بېلابېلو لارو تر سره کیږي (د انځورونو، د ریاضي نښو او شمیرو، د لاسونو د حرکت، د څیرې په حرکتونو او حتی د بدني حرکتونو له لارې) خو په ټولنه کې د اړیکو ډېر رواج شوی نظام د وینا(خبرو) او لیکلو نمونې دي چې موږ هغې ته ژبه وایو. ټولنه د وګړو مجموعه ده چې په ګډه چاپیریال کې ژوند کوي او ګډ بنسټونه، فعالیتونه او ګډې ګټې لري. خو که هغوی په یو ډول یو له بل سره اړیکې ونه لري. حتی نشي کولی له خپلو ګډو ګټو نه خبر شي او یا ګډ هدف ته ورسیږي. نو پایله یې روښانه ده. د اړیکو نه شتون یعني د ټولنې نه شتون. څرنګه چې په تېرو درسونو کې مو ولوستل فرهنګ د یو نسلوونکي او پیوند ورکوونکي ځواك په توګه عمل کوي او د هغو ځانګړتیاوو له امله چې لري یې خلك د نظریاتو، عقایدو، ګډو دودونو، رواجونو له نظره او د فرهنګ د لیږد، ذخیرې، رواج او خپریدو له لارو سره نښلوي. که چېرته یو فرهنګ له نورو فرهنګونو سره اړیکه ولري د فرهنګي استقراض یا رواج کېدو له امله په دې فرهنګ کې بدلون راځي.

**اشاعه**: د پوهې خپرېدل له یوه فرهنګ نه بل فرهنګ ته اویا د یو فرهنګ په منځ کې د

مختلفو ډلو تر منځه د پوهې خپرېدلوته اشاعه وايي: اشاعه هغه وخت پېښيږي چې یو ګروپ یا ډله د بلې ډلې ارزښتونه، دودونه، افکار، رسمونه، رواجونه او مادي شیان اقتباس کړي او ګټه ترې واخلي.

فرهنګ داسې ځانګړی علم نه دی چې په یوې مخصوصې طبقې پورې اړه ولري. دا داسې یوه قاعده او لاره ده چې ټولنه د فکرونو له ټولو ډولونو او ټولنیزو تو‌پیرونو سره سره د هغه غوښتونکې ده، د فرهنګونو په وده کې اساسي عنصر د هغوی ترمنځ د اړیکو ډول دی. اوس مهال زیاتره وخت اړیکې او تماسونه د ټولنیزو اړیکو د وسایلو په واسطه سرته رسیږي، رسنۍ یا د اړیکو وسایل په دوه ډوله دي: هغه رسنۍ چې پیغامونه یې مخامخ اود شخصي او مستقیم تماس په توګه د پیغام ورکوونکي او پیغام اخیستونکي ترمنځ تبادله او لېږدول کېږي. لکه: خصوصي خبرې اترې، خصوصي لیکونه او داسې نور. هغه ټولنیزې رسنۍ چې خپل پیغامونه ډېرو خلکو ته چې له هغو سره هېڅ ډول مستقیمه اړیکه نه لري رسوي. چې دا رسنۍ عبارت دي له: ټلویزیون، راډیو، ورځپاڼه، انټرنېټ، سینمایي فلمونه، مجلې او کتابونه.

د ډله ییزو اړیکو وسایل، د پروګرامونو په خپرولو سره نوي فرهنګونه رامنځ ته کوي. څرنګه چې اوس مهال ټکنالوژۍ ډېر پرمختګ کړی دی، دا روښانه ده چې د هغې اغېز د یو هېواد له ټولنیز وضعیت، تاریخي بنسټونو، فرهنګي او عقیدوي ځانګړتیاوو سره تړاو لري.

له دې موخو پرته، تکنالوژي هرومرو ټولنې ته داخلیږي او کله چې داخله شوه په نظریاتو او کړنو باندې اغیزه کوي، څرنګه چې په آسانۍ سره نه شو کولای له هغه تېر شو خو کولای شو هغه د غیرمادي فرهنګ په خدمت کې وګمارو او د نه منلو او یا ردولو په ځای له هغې نه مطلوبه ګټه واخلو. د نورو فرهنګونو ګټور عنصرونه جذب او غیر ضروري او نامناسب عنصرونه یې دفع کړو.

فرهنګي اړیکې یو دوه اړخیز او متقابل جریان دی. د اړیکو په جریان کې فرهنګ منونکي باید دې ته ځیروي، د هغه فرهنګ هغه عناصر چې ضرور نه دي ردکړي او د دې عناصرو په انتخاب کې ځیر او فعال واوسي. فرهنګي اړیکې هغه وخت ګټورې او اغیزمنې تمامیږي چې خپل شتمن، دودیز او تولیدي فرهنګ ورغوو. د هغه ضعیف ټکي اصلاح او په خپلو نویو

تګلارو او طریقو د هغه نیمګړتیاوې لیرې او وده ورکړو. هغه کړنې او تګلارې چې د هېواد لپاره مو مناسبې دي، اختراع او کشف کړو. یو هېواد هغه وخت په ستونزو او مشکلاتو باندې برلاسی کېدای شي چې د ټولنې د لوړ فکر خاوندان، استادان، یعنې هغه کسان چې د تولیدي تفکر لوړو مدارجوته رسیدلي وي راغونډ کړي چې د هېواد د شرایطو په نظر کې نیولو سره د ستونزو د حل لارې پیدا او له هغوی نه د چارو او مسائلو د حل لارې وغواړو. د نورو هېوادونو د حل لارې د هغو هېوادو د خپلو مسایلو د حل لپاره مناسبې دي. موږ کولای شو له نورو هېوادونو دا زده کړو چې دوی په کومو طریقو د خپلو مسایلو حل ته رسیدلي دي، یعنې دا چې د تفکر او فکر کولو طریقه له هغوی نه زده کړو، نه داچې د حل لارې له هغونه کاپي کړو.

## انټرنېټ څه شی دی؟

د انټرنېټ له نوم سره آشنا یاست، ممکن له هغه څخه مو ګټه هم اخیستې وي.

ستاسو په اند! څنګه کولای شو له انټرنېټ نه مناسبه او معقوله ګټه واخلو؟ په دې اړه په ټولګي کې بحث سره وکړئ.

انټرنېټ یوه پیچلې اطلاعاتي ارتباطی شبکه ده چې ډېر خدمتونه وړاندې کوي. انټرنېټ په علمي، فني، اقتصادي، سوداګرۍ، ټولنیزو، فرهنګي او سیاسي برخو کې فعالیت کوي. په بل عبارت انټرنېټ یوې عمومي مجلې ته ورته دی چې په هغې کې له مختلفو شیانو سره آشنا کیږو، له دوستانو سره په لرې فاصلو کې اړیکې نیسو، د نړۍ له حال او احوال، له سترو فکرونو، له جنایت، غلا، اخلاقي ضد چارو او د ډېرو نوروموضوعاتو نه خبرېږو.د وړاندوینې سره سم، په راتلونکو کلونو کې به د ټکنالوژۍ وضعیت نړۍ د اړیکو په تړاو د یوکور په شان کړي او د مصنوعي سپوږمکیو له لارې به دغه اړیکې نړۍ یوله بله سره ونښلوي.

څرنګه چې لیدل کېږي زیاتره اړیکې په تعلیمي مؤسسو، تعلیمي مرکزونو او څېړنیزو مرکزونو پورې اړه لري. نو ویلاي شو چې د تعلیمي مرکزونو، محصلین او متعلمین د ټولنې د علمي قشر په صفت له ټولو زیات له دې اړیکو سره تړاو لري. د دې موضوع په نظرکې نیولو سره، کولی شو له نوې تکنالوژۍ څخه د ټولنې د ملي او اسلامي ارزښتونو مطابق ګټه واخلو چې د فرهنګ د پراختیا او په علمي، فني، تخصصي برخو کې پرمختګ او د علمي بنسټونو د ودې په چارو کې

ګډون وشي. په هره ټولنه کې د نړۍ لید یوڅوکاټ موجود وي چې دا نړۍ لید(جهان بیني) ودې، پرمختګ، روزنې او سمون ته اړتیا لري. په دې نړۍ کې چې موږ ژوند کوو یوازې ناروغي او فساد نشته، دا نړیوال نظام د مثبتو او منفي اړخونو لرونکی دی، نو دا په موږ پورې اړه لري چې باید په منطقي انتخاب لاس پورې کړو.

## فرهنګي یرغل

فرهنګ د انسانانو ځانګړتیاوې لري. همداسې چې انسانان د اطلاعاتو او افکارو په مبادله لاس پورې کوي او د سولې په حالت کې ګډ ژوند ته دوام ورکوي، فرهنګونه هم همداسې دي. ځینې وختونه همداډول مبادله صورت نیسي او یو بل ساتي او اصلاح کوي یې. دا مبادله کولی شي د دواړو اړخونو د دوامدارې پرمختیا لامل شي، خو ځینې وختونه فرهنګونه هم د انسانانو په څیر د یو بل پرضد جنګ یا تېری اعلانوي. په پخوا زمانو کې د جنګونو او د تن په تن جګړو په پایله کې یو فرهنګ په بل فرهنګ غالب(زوروړ) یا مغلوب کېده، خو نن ورځ جسماني تلفاتو ته اړتیا نشته، بلکې د تبلیغاتو، مصرف او تولید له لارې کولی شو د برید لاندې فرهنګ عقیدې ته د تغییر ورکولو په پایله کې هماغه د پخواني دوران کار سرته ورسوو. دې واقعیت ته باید پام ولرو چې مغلوب یا پړ فرهنګ دی چې ضربه ویني او تېری ورباندې کېږي. همداسې چې یو میکروب(وایروس) همیشه او په هر ځای کې د ناروغۍ سبب کېږي. خو دا میکروب به ټول ناروغه نه کړي او هغه څوک به ناروغه شي چې وجود یې ضعیف وي او بدن یې د میکروب د جذبېدو لپاره اماده وي، فرهنګي تېری هم همدا ډول دی، هغه هېوادونه د فرهنګي تېري لاندې نه راځي چې داخلي چمتوالی ورته ولري.

کوم شي چې زموږ هېواد د پردیو له زیان او افت نه ساتلی دی، هغه زموږ فرهنګ او تمدن دی. افغانستان څو څو ځلې د پردیو د تېریو لاندې راغلی دی، خو هېڅکله زموږ شتمن او ویاړلی فرهنګ چې تل د اسلامي عقیدو او د ملي او هېواد پالنې په بنسټونو ولاړ دی، نه یوازې دا چې ماتې نه ده خوړلې او له منځه نه دی تللی، بلکې دښمنان او تېري کوونکي یې تل په ګونډو کړي او تسلیمېدو ته یې اړ کړي دي. که نه نو موږ به هم د کمزورو هېوادونو په شان خپله ژبه او فرهنګ له لاسه ورکړي وای. زموږ ګران هېواد افغانستان له یوې ځواکمنې فرهنګي مخینې

نه برخمن دی. د دې فرهنګي مخينې پر بنسټ او په ځانګړې توګه هغه دوه مهم عناصر، لکه: عقيده او ژبه چې ريښې يې د خلکو د طبقو او قشرونو په منځ کې ځغليدلې دي، خلکو ته دا ځواک او قوت ورکوي چې فرهنګي بريدونو ته ماتې ورکړي، د نويو فرهنګي تېريو پر وړاندې ودريږي او مقاومت وکړي.



## د لوست تکرار

- ..........
- ..........
- ..........
- ..........
- ..........



## پوښتنې

۱- د خلکو ترمنځ د اړيکو نه شتون په يوه ټولنه کې څه پايلې درلودلای شي؟

۲- ټولنيزې رسنۍ په فرهنګي اړيکو کې څه رول لوبوي؟

۳- ستاسو په آند له ټولنيزو رسنيونه معقوله ګټه اخيستل کوم دي؟

٤ - کوم هېوادونه زياتره تر فرهنګي تېري لاندې راځي؟

۵- کوم وضعيت ته فرهنګي تېری ويلای شو؟



## کورنۍ دنده

د ټولنيزو رسنيو دوه مثبتې او دوه منفي اغيزې وليکئ او بيا يې په ټولګي کې ولولئ.

## د لومړي څپرکي لنډيز

۱- خلک د فرهنگ له لارې کولای شي هغه وړتياوې ترلاسه کړي چې د ژوندي پاتې کيدو او بقا لپاره په مختلفو طبيعي چاپېريالونو کې لازمې دي، د بيلگې په توگه: څرنگه خوراکي توکي را ټول کړي، پاخه يې کړي، څرنگه کالي واغوندي او د ځان لپاره کور جوړ کړي.

۲- هغه چارې چې يو وگړی يې د يوې ټولنې د غړي په توگه سرته رسوي او که چېرته له هغه نه سرغړونه وکړي او مجازات شي، قواعد گڼل کيږي.

۳- عقيده او باور د ټولنې اعتقادي او عام اصول دي چې د اجرا کولو له ذمه واری سره تړاو لري او د ټولنې لوړ ارزښتونه منعکسوي.

۴- سمبولونه يا نښې د هغو حالاتو ښکارندويي وي چې انسان په ورځني ژوند کې ورسره مخامخ کيږي.

۵- د سمبول اساسي نظام په ټولنه کې ژبه ده. ژبه په ټولنيز ژوند کې لوی ضرورت گڼل کيږي او له هغې نه کار اخيستل د ټولنيز انسان له ځانگړنو څخه شمېرل کېږي.

٦- اوسمهال ډېر وخت اړيکې او تماسونه د ټولنيزو رسنيو د وسايلو په واسطه سرته رسيږي. لکه: ټلويزيون، راډيو، ورځپاڼه، انټرنېټ، مجلې او داسې نور.

روښانه ده چې د تکنالوژۍ اغېزې د يوه هېواد په ټولنيز ژوند، تاريخي عنعناتو، له فرهنگي ځانگړتياوو او عقايدو سره اړيکې لري.

# دویم څپرکی

## ټولنيزې ډلې

په دې څپرکي کې لاندې لوستونه لولئ:

- ډلې څه شی دی؟
- د ډلې جوړښت
- د ډلې رهبري.

# د څپرکي موخې

زده کوونکي به د دې څپرکي په پای کې وکولای شي چې:

- د ډلې مفهوم درک کړي.
- د ټولګي او ډلې توپیرونه واضح کړي.
- د ډلې په جوړښت پوه شي.
- د رهبرۍ په معنا پوه شي.
- د ډلې د رهبرۍ خاصیتونه څرګند کړای شي.

# ټولنیزه ډله



## خبرې پرې وکړئ

دې تصویر ته په ځیر سره وګورئ او داسې فکر وکړئ دا هغه ټولګی دی چې تاسې په هغه کې لوست کوئ نو:

تاسې ټول د دې ټولګي غړي یاست، همزولي یاست او یو د بل په څنګ کې کښینئ، ګډ ښوونکی لرئ، په ګډه یو شي ته خاندئ او په ګډه له یو شي نه خوابدي کیږئ. د ځانګړیو صفاتو درلودل او د زیات ګډ فعالیت درلودل تاسې له نورو ټولګیو او ګروپونو څخه جلا کوي، د بېلګې په توګه: ستاسې د ښوونځي د یوولسم ټولګي ښوونکی بل شخص دی، د هغو زده کوونکو عمر له تاسونه لوړ دی، لوستونه مو سره توپیر لري. نو ویلی شو چې ستاسو ټولګی د ګډو خصوصیاتو او فعالیتونو درلودونکی دی. چې تاسې له نورو نه جداکوي، د بیلګې په توګه: تاسې په ټولګي کې داسې کړنې او فعالیتونه، لکه: (**یوځای درس ویل**)، (**له یوبل سره د لوستونو په زده کړه کې مرسته کول او کورنۍ دندې**) په ګډه سرته رسوئ، تاسې په اسانۍ سره کولی شئ له خپلو ټولګیوالو سره اړیکې وساتئ، کولی شئ له هغو سره په آسانۍ خبرې اترې وکړئ، د درسي ستونزو په اړه یوله بله پوښتنې وکړئ، دې کارونو ته متقابلې اړیکې یا متقابل عمل وایي، نو پردې بنسټ ویلی شو: ډله له هغو خلکو جوړه ده چې د ګډو خصوصیاتو لرونکې وي او یو له بل سره ګډې ټولنیزې متقابلې اړیکې یا متقابل عمل ولري او دا اړیکې تر یوه حده منظمې او پایداره وي او هغوی پوهېږي چې دوی د دې ډلې یوه برخه ده، نو ویلی شو چې ډله د انسانانو مجموعې ته ویل کېږي چې ګډ خصوصیات او فعالیتونه ولري اوله یو بل سره نسبتاً پایداري اړیکې لري. ټولنپوهان ډله داسې تعریفوي: **ټولنیزه ډله له هغه واحد څخه عبارت دی چې د دوه یا له دې زیاتو وګړو څخه چې د هغو ترمنځ نسبتاً پایداره متقابل عمل موجود وي چې په نوم او ډول مشخص کېږي. د ګډ تفاهم لرونکي وي، د فکر او عاطفې له اړخه هم خپل ځانونه یو بل ته نژدې بولي، د ګډ ارمان او هدف لپاره یو له بل سره مرسته او لاس نیوی کوي چې همدا ډله هغه ته د رسیدو په مقصد منځ ته راغلی دی.** له پورتني تعریف څخه دې پایلو ته رسیږو چې:

۱- د ډلې غړي د متقابل عمل درلودونکي دي او یو له بل سره متقابل عمل لري.

۲- دوی په دې پوهیږي چې د ډلې غړي دي.
۳- دګډ تفاهم لرونکي دي او د روحيې، عاطفې او فکر له اړخه خپل ځانونه يو بل ته نژدې احساسوي.
٤- يوهدف او ارمان لري او هغه ته د رسېدو لپاره له يو بل سره مرسته کوي.

## خبرې پرې وکړئ

څو کسان په نظر کې و نيسئ چې په يوه لوبغالي (استديوم) کې راټول شوي دي چې د فوټبال لوبه وګوري:

- ستاسي په اند! آيا دې خلکو ته ډله ويلی شو؟ په داسې حال کې چې هغوی د فوټبال لوبې د ليدلو غوښتونکي دي؟

- آيا هغه ځانګړتياوې چې يوه ډله يې لري، په دې ډله کې ليدل کېږي؟

تاسې له ډېرو خلکو سره اړيکې او متقابل عمل لرئ او همدارنګه تاسې د لومړنيو ډلو، لکه: له کورنۍ، د همزولو او د دوستانو له ډلې نه پرته له نورو ډلو سره هم اړيکې لرئ، د بېلګې په توګه:

- هغه کسان چې يو ورزشي لوبغالي ته د فوټبال د کتلو لپاره ځي، کېدای شي له نورو سره په ګډه د خپلې خوښې ټيم وهڅوي، خپل څنګ ته ناست شخص نظر د فوټبال د لوبې په هکله و پوښتي او کېدای شي خپل نظر هم هغه ته ووايي. خو د ملي بس د مسافرو، يا د هغو خلکو چې د فوټبال د لوبې د کتو لپاره لوبغالي ته ځي، ګډ خصوصيات او ګډ فعاليتونه ډېر محدود او متقابلې اړيکې يې هم نا دوامه او بې ثباته وي. په دې اساس يو شمېر خلك چې په يو مشخص ځای کې د کومې پېښې او يا په کوم بل علت سره راټولېږي، د ټولنيزو اړيکو د ډول له لحاظه، ډېره ابتدايي اوبې ثباته ټولنيزه ډله ګڼل کېږي. د دې خلکو اړيکې مؤقتي،نا دوامه او په آسانۍ سره له منځه ځي. ځکه له دې ماحول نه له وتلو سره سم يې له يو بل سره اړيکې ختميږي. دا رنګه ډلګۍ هېڅ ډول شکل، سازمان يا ګډې ځانګړتياوې چې بايد يوه ډله يې ولري نه لري. دې ډول ډلو ته دويمه درجه ډله هم وايي.

**ګڼه ګوڼه**: لانديني انځورته په ځير سره وګورئ او ووایاست چې په دې انځور کې څه شی ګورئ. په دې انځور کې يو شمير خلك وينئ چې د ډوډۍ پر وړاندې په قطار کې ولاړدي او د ډوډۍ رانيولو ته انتظار باسي. د دې خلکو چې د ډوډۍ پر وړاندې ولاړ دي ګډ خصوصيات د ډوډۍ اخيستل دي. هغوي د يوې لنډې مودې لپاره د يوبل په څنګ کې پاتې کېږي. د کورنۍ د غړو، دوستانو، ټولګيوالو او همزولو اساسي توپير له هغوکسانو سره چې د يوه ډوډۍ **پخوونکي** خوا ته په يو ملي بس او يا په يو لوبغالي کې دي ليدل کېږي. د وروستۍ ډلې متقابلې اړيکې مؤقتي

او بې ثباته دي، هغوی مشخص خصوصیات او فعالیتونه نه لري او داسې جوړښت نه لري چې له سلسله مراتب او د کار ویش نه بر خمن وي، د بېلګې په توګه: د فوټبال د ټیم طرفداران یوه ډله یا ګڼه ګوڼه جوړوي هغوی له لوبې څخه وروسته هر لوري ته خپرېږي، عادي حالت ته راګرځي او د لوبغالي څخه له راوتلو وروسته له یو بل سره هیڅ اړیکې نه لري.



## ټولنیزه ټولګه

یوه ټولنیزه ډلبندي ده چې افراد د ځانګړو خصوصیاتو په بنسټ په هغې کې ګډون کوي، لکه: هغه کسان چې یو ډول شغل او مشابه عاید ولري، لاندینۍ بیلګې ته پام وکړئ:

• د یوه ښوونځي هر ټولګی یو اول نمره لري. دا زده کوونکي یو له بل سره هېڅ ډول ټولنیزې اړیکې نه لري، خو د ښوونځي مدیر دا زده کوونکي د ښوونځي د اول نمره ګانو د ډلګۍ په توګه پیژني او پوهیږي چې ٤٠ کسه اول نمره زده کوونکي لري.

د ډلې، ګڼې ګوڼې او ټولنیزې ډلګۍ پرتله په لاندیني جدول کې په روښانه توګه ښودل شوې ده.

| عنوان | ځانګړتیاوې | مثال |
|---|---|---|
| ډله | ګډې ځانګړتیاوې.<br>- متقابلې اړیکې یا ټولنیز عمل<br>- منظمې او باثباته اړیکې | کورنۍ<br>- همزولي<br>- ګاونډي |
| ګڼه ګوڼه | نا دوامه او بې ثباته اړیکې د متقابلو اړیکو نشتوالی د ګډو خصوصیاتو او فعالیتونو نشتوالی | - د نانبایي په قطار کې ولاړ خلک<br>- د سرویس مسافر<br>- په لوبغالي کې د فوټبال کتونکي |
| تولنیزه ډلګۍ | - د یوګډ خصوصیت درلودل<br>- خو د متقابلو اړیکو نشتوالی | - د یو ډول دندې درلودونکي<br>- اول نمره ګان |

### د مرجع ډله

تاسې هره ورځ ښوونځي ته ځئ، د سواد له زده کړې پرته نورې موخې هم لرئ. ممکنه ده د هغې لپوالتیا له کبله چې له خپل ښوونکي سره یې لرئ، غواړئ چې ښوونکي شئ. له دې امله هڅه کوئ چې د ښوونکو په څېر خپل معلومات او پوهه زیاته کړئ. تاسې هڅه کوئ چې د خپلو ښوونکو کړه وړه زده کړئ او هغو کړو وړو ته چې ښوونکی ارزښت ورکوي اوښه یې بولي تاسې هم هغه کار سرته رسوئ. په دې ډول ښوونکی ستاسې لپاره د مرجع ډله ده. په دې توګه د مرجع ډله هغه ډله ده چې فرد د هغې غړی نه دی، خو د هغې ډلې سره د یو ځای کېدو یا مشابه کېدو هیله لري.

#### د لوست تکرار

- ..........................................................................................
- ..........................................................................................
- ..........................................................................................
- ..........................................................................................
- ..........................................................................................

#### پوښتنې

۱- ډله تعریف کړئ؟

۲- ټولګه او ډله څه توپیر لري؟

۳- هغو کسانو ته چې د نانبایي په قطار کې ولاړ وي ډله ویلی شو؟

٤-ډله څه ډول جوړیږي؟

٥- ګڼه ګوڼه له ټولنیزې ټولګې سره څه توپیر لري؟

#### کورنۍ دنده

د ډلې، ګڼې ګوڼې او ټولنیزې ډلګۍ په هکله یو یو مثال و لیکئ او بیا یې په ټولګي کې د زده کوونکو پر وړاندې ولولئ.

# د ډلو جوړښت



## خبرې پرې وکړئ

خرنګه چې په تېر لوست کې دا روښانه شوه چې وګړی سره له دې چې خپل فردیت ساتي د دې په څنګ کې ځان د یوې ډلې غړی بولي، د پورته مطلب په نظر کې نیولو سره لاندې پوښتنوته ځواب ورکړئ.

١- آیا د ځوکسانو په را ټولیدو یوه ډله تشکیلېږي؟

٢- ټولنیزه ډله څنګه جوړېږي؟

د خلکو هڅه د دې لپاره چې له یو بل سره اړیکې ونیسي یو داسې واقعیت دی چې په هر ځای کې د هغه شاهدان یاست:

- په ملي بس کې د لارې په اوږدو کې د خبرو او صمیمت پیل کول.

- د مینې او صمیمت ښکاره کول او له نورو سره مرسته کول دا د هغو هڅو بېلګې او نمونې دي چې خلک یې یو له بل سره د اړیکو نیولو، د دوستۍ او همغږۍ د پیداکولو لپاره سرته رسوي.

خو یوازې د ځوکسانو په راټولېدو سره یوه ډله نشي جوړیدای. جوړه شوې ډله ممکنه ده ډېره سطحي او محدوده وي چې له دې امله به ډېر ژر له منځه ولاړه شي. لکه په یوه لیني سرویس کې چې یو شمېر کسان همسفره وي، هغوی که ان د سفر په اوږدو کې ډېر زیات صمیمي هم وي، خو کله چې مقصد ته ورسیدل د دوی اړیکې له منځه ځي او هرڅوک پخپله لاره ځي.

هر څومره چې د ورته والي او ګډو اړیکو کچه ډېره وي، جوړې شوې اړیکې لا پرمختګ کوي، په دې ډول د دوارو خواو تعامل لا دوامداره کېږي، په داسې حالت کې وګړي یوه ډله پېژندل کېږي.

**فعالیت**

یو له بل سره د خلکو دوستي، د اړیکو ټینګولو او د دوست پیدا کولو هڅه د څه لپاره ده؟

خلکځ ولې د ژوند په هره دوره کې د صمیمي دوستانو د موندلو او اړیکو ټینګولو په هڅه کې وي؟

ځینې فیلسوفان د دې پوښتنې په ځواب کې وایي چې انسان په طبیعي توګه ټولنیز موجود دی، دا هڅې د انسان له طبیعي غوښتنې نه سرچینه اخلي چې غواړي ټولنیز ژوند جوړکړي او خپلې اړتیاوې پوره کړي. دا هیلې او اړتیاوې له نوروسره د هغه د ټولنیزو اړیکو د ټینګوالي سبب ګرځي چې د ټولنې د دوام او ثبات لامل ګرځي.

ممکنه ده چې دا اوس تاسې د څو ډلو غړیتوب ولرئ، خو ولې په دې ډلو یا ډله کې شامل شوي یاست؟ تجربو ښودلې ده چې وګړي معمولاً په څو دلیله له یوې ډلې سره یوځای کیږي:

۱- ډله د خپلو غړو رواني (ارواحي) او ټولنیزې اړتیاوې پوره کوي، په دې معنا چې انسان ته د ډلې په غړیتوب سره دا احساس پیدا کیږي چې فکر وکړي هغه له همدې ډلې سره تړاو لري او په ډله کې د پاملرنې، مینې او محبت وړګرځي.

۲- د ډلې غړي په ډله کې د رواني او ټولنیز امنیت احساس کوي .

۳- انسانان په ډله کې د کار او فعالیت لپاره ډېره لېوالتیا ښیي.

٤- ډله په هغو کارونو کې مرسته کوي چې د ډلې غړي یې په سرته رسولو کې بې وسې شي.

٥- د ډلې غړي د هغو معلوماتو او پوهې په را ټولولو کې چې هر غړی یې په یوازې توګه نشي کولی لاس ته راوړي، مرسته کوي.

٦-د ډلې غړي زیاتره یو د بل لپاره علم او خبرونه چمتو کوي چې هر غړي هغو ته د رسیدلو توان نه لري.

## ستاسې په اند کورنۍ څنګه او د څه لپاره جوړېږي؟

د کورنۍ ډله د ټولنيزې ډلې د اصلي ډلې په نوم خپل پايښت د واده او تولد له لارې ساتي. کورنۍ هغه ډله ده چې غړي يې د نسبولي او خپلولۍ لرلو له کبله په خپلو کې صميمانه، تل پاتې او کلکې اړيکې لري.

**خبرې پرې وکړئ**

### آيا پوهېږئ چې کوم شيان د دوستانو ترمنځه د اړيکو لامل ګرځي؟

د دوستانو ډله په نظر کې ونيسئ، څوکسان د دې لپاره چې همزولي دي، خورا ښه کولی شي يو بل سره پوه کړي، هغوی يو له بل سره خبرې کوي، دوستي کوي، کورنۍ دندې سرته رسوي، يو ځای لوبې کوي، له دې کبله په دې ډله کې غړيتوب د احساس پر بنسټ رامنځ ته کېږي او د کورنۍ‌په ډله کې غړيتوب د عواطفو له مخې تشکل پيدا کوي.

نور ډولونه هم شته، لکه ورزشي ډله،د همکارانو ډله او نور.... غړيتوب په ځينو ډلو کې آګاهانه او د نو مورې ډلې له معيارونو سره سم رامنځ ته کېږي، که يو کس غواړي چې د دې ډلې غړی شي معمولاً بايد:

بايد يو فورم چې د غړيتوب غوښتنليک دی ډک کړي. له هغو کسانو چې وغواړي په دې ډله کې شامل شي، امتحان اخيستل کېږي. وروسته له منلو له هغه سره قرارداد امضاکېږي. غړيتوب په داسې ډلو کې ټاکلې پړاو لري چې د قرارداد د مودې له پوره کيدو وروسته تاسې د هغه ډلې غړی نه بلل کېږئ. ځينې ډلې وګړي په رسمي توګه د ډلې له غړيتوب څخه د يو مکتوب په ذريعه وباسي او د هغه غړيتوب ملغی کوي.

هغه څه چې مو په دې لوست کې ولوستل داسې پايله ترې اخيستلای شو چې:

کورنۍ د يوې اصلي ټولنيزې ډلې په توګه خپل پايښت د واده کولو او اولادونو د پيداکولو له لارې تضمينوي. کورنۍ ده چې انسان پکې منځ ته راځي او داکورنۍ ده چې انسان ته ور زده کوي، ترڅو له هغې ډلې سره چې نژدې او صميمي اړيکې لري په آرامه فضا کې ژوند وکړي.

هر انسان د خپلې انساني بشر پالنې او له يوازېتوب نه د لرې کېدو او د ټولنيز ژوند د دوام لپاره د دوستانو ډلې ته ور داخليږي. دا ډله په همدې ډول لوييږي او زياتيږي، داسې چې يو شخص کيدای شي د ټولنيز ژوند د تېرولو لپاره په څو ډلو کې غړيتوب ولري. په دې ډول موږ د هر ډول ټولنيز ژوند کولو لپاره د ډلې غړيتوب ته اړتيا لرو.



### د لوست تکرار

•.......................................................................................................

•.......................................................................................................

•.......................................................................................................

•.......................................................................................................

•.......................................................................................................



### پوښتنې

١- د کورنۍ او دوستانو ډله څه توپير لري؟

٢- ډلې ته د انسان د ورتګ لامل څه شی دی؟

٣- ډله څنګه جوړيږي؟

٤- لاندې جملې بشپړې کړئ:

٥- کورنۍ ده چې انسان ..........راځي او دا کورنۍ ده چې انسان ورته.......... کوي.

٦- په ډله کې غړيتوب د..........له لارې رامنځ ته کېږي.



### کورنۍ دنده

آيا تاسې د کورنۍ له ډلې پرته د کومې بلې ډلې غړي ياست؟ ځواب په خپله کتابچه کې وليکئ او بيا يې د ټولګي په وړاندې ولولئ.

# د ډلې مشرتوب(لارښوونه)

په تېر لوست کې مو زده کړل چې ډله څه ډول جوړېږي او تشکل پیدا کوي. په دې لوست کې به د ډلې له رهبرۍ سره آشناشئ.



## خبرې پرې وکړئ

په هره ټولنیزه ډله کې داسې کسان دي چې مشرتوب کوي:

- آیا کیدای شي د دې رهبرۍ لامل پیدا کړو؟
- آیا یوه ډله چې موخې ته د رسیدو لپاره فعالیت کوي. له مشر څخه پرته موخې ته رسیدای شي؟
- تاسې په خپله کورنۍ کې د چا اطاعت کوئ؟

زموږ مقصد له رهبر نه هماغه دی چې په انګلیسي ژبه کې **لیډر** ورته وایي. هغه څوک چې په ډله کې د تصمیم نیولو توان او د پرګنو د باور لومړیتوب لري مشر یا رهبر ورته وایي. هغه سړي ته چې په طبیعي ډول او د وړتیا په ښودلو سره یې د ډلې اداره په لاس کې نیولې ده، د ډلې اړتیاوې پوره کوي، هغوی ته ګټور تمام شي او هغوی خپلو موخوته ورسوي د ډلې رهبر دی، لکه: مذهبي مشران، د سیاسي احزابو مشران، د هېوادونو رهبران، مشران او نور. **مشري** هغه څرګنده پدیده ده چې تل په ډله کې منځ ته راځي. څوک چې یو بل په زور او جبر یا د هغه پخپل رضایت او پوهې د یو کار سرته رسولو او پریښودلو ته اړ کړي او موخې ته د رسیدو یا د هغه مخنیوي لپاره هغه په حرکت راولي، مشرتوب بلل کېږي.

### ولې یوه ډله مشر ته ضرورت لري؟

لاندې بېلګې ته پاملرنه وکړئ: د یوې ورزشي ډلې مشر د یوې لوبې د اداري ترڅنګه د هغې کیفیت هم لوړ وي. هغه هر نفرته د هغه مسؤولیتونه ورپه ګوته کوي او هڅه کوي چې د لوبې نیمګړتیاوې له منځه یوسي. وینو چې د لوبې له پیل نه مخکې هغه له لوبغاړو سره خبرې کوي او د هغوی نظر د هغو کارونو په اړه چې باید سرته یې ورسوي پوښتي. د بېلګې په توګه: کله چې غواړي د لوبغاړو د دریدو ځایونه معلوم کړي له ټولو لوبغاړو سره مشوره کوي او بیا تصمیم نیسي. نوله دې کبله د یو رهبر یا مشرتوب دنده ډله یېزو موخو ته د رسېدو لپاره د ډلې د غړو په کړو وړو او اعمالو کې د همغږۍ راوستل دي.

### آیا پوهیږئ چې د ډلو مشران له کومو ځانګړتیاوو څخه برخمن دي؟

که څه هم کومه ځانګړې قاعده وجود نه لري، خو بیاهم داسې ښکاري چې مشران د ډلې نورو غړوته ښه ښکاره کېږي، پرهیزګاره د ښه فکر او ښه ذهن خاوندان وي او بالاخره خوږ ژبي او د

قوي عزم او ارادې خاوند وي. پر نفس باندې له فوق العاده اعتماد او باور څخه برخمن وي.

**ستاسي په فکر! له دې ځانګړتیاوو پرته چې وویل شول، مشران نورې کومې ځانګړنې لري؟**

د مشرۍ سرچینې په بېلابېلو حالاتو کې توپیر لري چې د داخلي او فردي ځانګړنو څخه سرچینه اخلي.

مشرتوب ته رسېدل یا د ټاکنې له لارې او یا انتصابي وي.

ټاکنه کیدای شي د یو سازمان په واسطه او یا د رهبر له خوا وشي. د مشرتوب منشاوې او سرچینې کولی شو داسې ډلبندي کړو؟

- د خلکو له خوا ټاکل شوی مشر(د ګوند د خلکو مشر).
- د یوه وګړي له خوا ټاکل شوی مشر.
- د یوه سازمان له خوا ټاکل شوی رهبر (سازماني مشر).
- د خپل ځان له خوا ټاکل شوی مشر (ځان ټاکلی).

د مشر شتون په ټولنه کې اړین دی، ځکه د مشرتابه شتون د هغه پیروانو ته په نفس باندې د باور احساس، ځواک او زیاته وړتیا ورکوي.

**د رهبرۍ غوره ځانګړتیاوې او صفتونه په لاندې ډول دي:**

۱- مشر باید عادل وي.

۲- رهبر باید پرهیزګار (باتقوا) وي.

۳- رهبر باید مدبر وي، د مهمو چارو د سرته رسولو لپاره تدبیر، تصمیم نیونه او وړاندوینه ډېره اړینه ده.

٤- مشر باید سیاسي او ټولنیز لید او بینایي ولري.

٥- مشر باید د چارو په اداره کولو برلاسی وي. که چیرته اداره کولو (مدیریت) ته پاملرنه ونه شي د مشرۍ مسؤولیت سرته نه شي رسولای.

٦-مشر باید پلان او پروګرام ولري.

۷-مشر باید زړور وي. هغه مشر چې زړور نه وي نه شي کولای چې په طوفانونو کې خپل رعیت په خوشبخت راولي، قوت ورکړي او د پېښو او حوادثو مخنیوی وکړي.

۸- ښه تشخیص ولري.

۹- باید کاري ټیم ولري او د هغوی ترمنځه مرستې او محبت ته وده ورکړي.

۱۰- موضوع په چټکۍ سره تشخیص کړای شي.

۱۱- له تصمیم نیولو وروسته په چټکۍ عمل وکړي.

۱۲- مشر باید له فساد او جنایت نه لېرې وي.

۱۳- په تصمیم نیولو کې چټک وي.

۱٤- په اقدام کولو کې چټک وي او موخو ته د رسېدو لارې ته دوام ورکړي.

۱٥- د انتقاد ظرفیت ولري.

۱٦- مشر باید خپل مسؤولیت وپېژني او پوه شي چې رهبري یو لوی امانت دی، ده ته ور په غاړه دی او د هغه ځواب ورکوونکی دی

۱۷- رهبر باید داسې ځانګړتیاوې ولري چې یوازې په ده پورې تړاو ولري، ترڅو وکولای شي د یوې مشرۍ ترلاسه کړي.

## آیا پوهیږئ د مشرتوب څو طریقې موجودې دي؟

ټولنپوهانو په ډله کې د متقابل عمل څېړنې په ترڅ کې د مشرۍ درې ډولونه پېژندلي دي:

د خلکو مشر، مطلقه مشر، بې قیدوبنده مشر.

۱- **د موکرات مشر**: د موکرات مشر د ډلې موخوته د رسېدو لپاره د ډلې نظریات او وړاندیزونه د خپلو چارو اساس ګڼي، تصمیم نیول به د ډله ییز توافق پر بنسټ وي، د مشر دنده د ډلې د عمومي تګ لارې د ټاکلو په برخه کې د ډلې د غړو هڅول او مرسته ده. د کاروېش خپله غړو ته پرېښودل کېږي او هر څوک په خپلواکه توګه له هر چا سره چې وغواړي کولی شي کار وکړي. مشر د ګروپ یو مسؤول غړی او د کارونو په سرته رسولو کې ګډون لري. دا ډول مشر په بحراني وختونو کې لږ بریالیتوب لري، خو د ټولنې او ډلې د دوام او سمون د تضمین په اړه د مطلقې رهبرۍ په پرتله له ډېر ګټور توب او مؤثریت نه برخمن دی. نوموړي مشران د ډله ییز تصمیم نیولو په برخه کې د ګروپ د غړو ګډون ته ډېر ارزښت ورکوي.

۲- **مطلقه مشر**: په دې ډول مشرۍ کې د ډلې د فعالیت او چارو د سرته رسولو تصمیم د مشر په خوښه نیول کېږي. د هر چا چارې او همدارنګه له هر چا سره مرسته مشر ټاکي. نوموړی په ډله کې په خپله خوښه تصمیم نیسي. په ډله ییزو چارو او فعالیتونو کې برخه نه اخلي.

دا ډول مشري د ډلې د ډېرو غړو د منلو وړنه ده. دا ډول مشرتوب د ډلې یا ټولنې د غړو د موخو، مقرراتو او کړو وړو ټاکونکی دی. دا ډول مشري کولی شو په وسلوالو ځواکونو، دیکتاتوري حکومتونو، صنعتي او سوداګریزو تشکیلاتو، او په پلار سالارو کورنیو کې ومومو.

**د پورتنیو مطالبو د بیان پر بنسټ او د ډلې د غړو په مرسته د څلورو مطلقه مشرانو نومونه واخلئ.**

۳- **بې قیدو بنده مشري**: په دې ډول مشرۍ کې مشر بې قیده دی او په اداره کې د ډلې د سمون په اړه ډېره لږه پاملرنه لري- وګړي د کار د سرته رسولو په انتخاب کې کاملاً خپلواک دي.

د مشر رفتار او کردار د ډلې له غړو سره دوستانه دی او معمولاً د غړو د کړو وړو صفت او یا پرې نیوکه نه کوي.

له پورته مطالبو څخه څه ناڅه د ډلې د مشرۍ په اړه پوه شوئ او دا مو زده کړل چې په یوه ډله کې مرسته او د مسؤولیت احساس اړین دی. همدارنګه اړینه ده چې هره ډله خپل ځان ته یو رهبر ولري، د دې لپاره چې د ګروپ چارې په ښه توګه سرته ورسیږي، د ګروپ غړي باید د رهبر یاد خپل مشر پیروي وکړي.

رهبر هم د ګروپ له غړو سره په مشوره کولو کې د ټولو لپاره یو د دوستۍ چاپېریال جوړوي.



### د لوست تکرار

• ..........................................................................................

• ..........................................................................................

• ..........................................................................................



### پوښتنې

۱- مشر تعریف او له یو مثال سره یې واضح کړئ.

۲- مشري تعریف کړئ او د مشرۍ یوڅو نمونې وښایاست.

۳- د مشرۍ ټاکنه څرنګه رامنځ ته کیږي، لنډ معلومات ورکړئ.

٤- د مشر غوره صفتونه بیان کړئ.

٥- د مشرۍ څو ډوله لاري موجودې دي، په لنډه توګه یې توضیح کړئ.



### کورنۍ دنده

دموکرات مشر له مطلقه مشر سره پرتله کړئ، توپیرونه یې ولیکئ او د ټولګي پر وړاندې یې ولولئ.

## د دویم څپرکي لنډیز

۱- ډله د هغو خلکو له مجموعې نه جوړه ده چې د ګډو خصوصیاتو لرونکي دي او له یو بل سره ګډې ټولنیزې متقابلې اړیکې یا متقابل عمل ولري او دا اړیکې تر یوه حده منظمې او دوامداره وي.

۲- ګڼه ګونه: د ډېرو خلکو څخه عبارت دی چې د هغوی متقابلې اړیکې مؤقتې او لنډ مهالې وي، هغوی ځانګړي او معلوم فعالیتونه نه لري، وروسته له هغه کاره چې د هغې لپاره راغونډ شوي وو، بېرته خپرېږي.

۳- ټولنیزه ټولګه: هغه ډله بندي ده چې افراد په کې د ځانګړو خصوصیاتو له مخې ګډون لري، لکه: یو ډول شغل یا د مساوي عایداتو کچه.

۴-خلک ځکه د ډلې غړیتوب لاس ته راوړي چې د هغوی اروا یې او ټولنیزې اړتیاوې، لکه: د ډلې د غړیتوب درلودل، د پاملرنې او یا د مینې او محبت وړ ګرځېدل پوره کوي.

٥- د دوستانو په ډلې کې غړیتوب د احساس له مخې تشکل مومي او غړیتوب د کورنۍ په ډله کې د عواطفو له مخې جوړېږي.

٦- هغه کس چې په ډله کې د تصمیم نیولو توان او د پرګنو د باور لومړیتوب لري، مشر یا رهبر ورته وایي. هغه کس ته چې په طبیعي ډول او د وړتیا په ښودلو سره د ډلې اداره په لاس کې ونیسي د ډلې اړتیاوې پوره کړي، هغوی ته ګټور تمام شي او هغوی خپلو موخو ته ورسوي د ډلې مشر بلل کېږي.

# دریيم څپرکی

## ټولنيز بنسټونه

په دې څپرکي کې لاندې لوستونه لولئ:

١ - ټولنيز بنسټ

٢ - ټولنيز بنسټ

٣- ټولنيز بنسټ

۴- د بنسټونو متقابلې اړیکې.

# د څپرکي موخې

زده کوونکي به د دې څپرکي په پای کې وکولای شي چې:

• ټولنیز بنسټ تعریف او د ټولنیز بنسټ له ماهیت سره اشنا شي.

• د غوره ټولنیزو بنسټونو لېست جوړ او لومړي او دوهم بنسټونه توضیح کړای شي.

• د ټولنیزو بنسټونو غوره کړه وړه توضیح کړای شي.

• د ټولنیزو بنسټونو متقابلې اړیکې و پېژني.

• د هغه رول په هکله چې په خپل اړوند ټولنیز بنسټ کې یې لري، مثبت ذهنیت پیدا کړي.

# ټولنيز بنسټ (نهاد) (۱)



په تېر لوست کې مو ولوستل چې موږ د هر ډول ژوند کولو لپاره په گروپ کې غړي یتوب ته اړتیا لرو. همدا رنگه انسان استوگنځي، خوړو، کالیو، کار، زده کړې، امنیت، محبت او ... ته اړتیا لري او د خپلو اړتیاوو د پوره کولو لپاره یې له پخوا نه تر اوسه له مختلفو لارو څخه استفاده کړې ده. د دې مطلب په نظر کې نیولوسره:

- آیا ویلای شئ د دې اړتیاو پوره کول څنگه او له کومې لارې څخه سرته رسیدای شي؟

**بنسټ هغه دوامداره اړیکې دي چې د اړتیاوو د پوره کولو لپاره منځ ته راغلي دي.**

د دې لپاره چې هره ټولنه وکولی شي ژوند ته دوام ورکړي، باید خپلې مختلفې اړتیاوې پوره او له منځه یوسي. د تاریخ په اوږدوکې د دې اړتیاو د پوره کولو لپاره اړیکې منځ ته راغلې، جوړښت یې موندلی او دوام یې پیداکړی دی چې هغو ته بنسټ وایي.

د بنسټ اصطلاح(Social Institution) له معادل څخه چې په لاتیني ژبه کې مستقر کیدلو، جوړولو او تثبیتولو په معنا ده اخیستل شوې ده.

د انستیتوت(Institute) کلمه د یوناني ریشې(Institutor) نه اخیستل شوې ده چې د بنسټ او بنیاد معنا ورکوي او د انتخابولو او ځای پر ځای کولو په معنا هم را غلې ده. د مؤسسې، مکتب او یا هغو ځایونو په معنا هم راغلې ده چې هلته خلک د لوړو تحصیلاتو په زده کړه بوخت دي. په فرانسوي ژبه کې دا اصطلاح دیو اورگانیزم او یا یو ډول ټولنیز سازمان لپاره په کاریږي.

په دري ژبه کې نهاد د نهادن له کلمې نه مشتق شوې دی چې ډول ډول معناوې لري، لکه: ثبات، استحکام، اصل، ریښه، روش، قانون، اساس، بنیاد، قرار، سنت او داسې نور او په پښتو ژبه کې د بنسټ او بنیاد معنا لري.

که چیرته ټولنه د پایښت او دوام غوښتونکې وي باید د هغې اساسي اړتیاوې پوره شي. د بېلګې په توګه: کوچنیان باید تر پالنې لاندې ونیول شي چې وده وکړي، فرهنګي اطلاعات باید له یو نسل نه بل نسل ته انتقال شي، د ټولنې ارزښتونو او قواعدو ته باید درناوی وشي ترڅو ښه ټولنیز نظم منځ ته راشي، توکي او خدمتونه باید تولید او ووېشل شي. نو له دې کبله ویلی شو چې ټولنیز بنسټ یعنې هغه دوامداره اړیکې دي چې اړتیاوې لیرې کوي. هره ټولنه د وخت په اوږدو کې د اساسي اړتیاو د پوره کولو لپاره په منظمو او پیچلیو اقداماتو لاس پورې کوي. دا ډول کړه وړه د ټولنې د پایښت او بقا د اړتیاوو له کبله منځ ته راځي او دوام پیدا کوي. خو دا اړتیاوې په ټولو ټولنو کې یو ډول نه دي. دا جوته ده چې اړتیا نه وي بنسټ منځ ته نه راځي او دوام نه کوي، د بېلګې په توګه:

• کورنۍ او واده داسې بنسټ دی چې د وګړو ژوند او شتون په هغې پورې تړلی دی او د کورنۍ د ټولو چارو سمون ورکوونکی دی. د کوچنیانو د روزنې، پالنې له دندې نه علاوه د بشر د پایښت لامل ګرځي. نورې ډیرې دندې لکه: اقتصادي فعالیتونه، ښوونه او روزنه، ټولنیز کول او نور هم پر غاړه لري.

• دا ضروري وه چې د پخوانیو خلکو فرهنګي میراث را تلونکو نسلونو ته انتقال شي، د همدې مقصد لپاره د ښوونې او روزنې بنسټ منځ ته راغلی دی.

• ټولنه نظم ته اړتیا لري او لازمه ده چې عمومي چارې یې سمون او نظم پیدا کړي له دې کبله سیاسي بنسټ منځ ته راغی.

• ټولنې اړتیا درلودله چې د وګړو اړیکې مشخصې او جوتې شي. د دې لپاره حقوقي بنسټ جوړ شوی دی او داسې نور.

## پرتله یې کړئ

- د انسانانو په اړتیاووکې کوم توپیرونه وینئ؟

- آیا پوهیږئ د لرغوني عصر د انسانانو او اوسنیو انسانانو د اړتیاوو پوره کولو په لاروکې کوم توپیرونه موجود دي؟

څرنګه چې وویل شول بنسټونه د انسانانو د اړتیاوو د پوره کولو لپاره منځ ته راځي، دا اړتیاوې کولی شو د اهمیت له نظره په دوو ډلو ووېشو:

• **لومړۍ درجه اړتیاوې**: هغه اړتیاوې دي چې له هغو پرته د انسان ژوند نا ممکن وي، لکه خوراک، پوشاک، اوبه، استوګنځی او نور.

• **دوهمه درجه اړتیاوې**: هغه اړتیاوې چې د ټولنې له موجودیت سره تړاولري او له هغو پرته په ټولنه کې ژوند کول نا ممکن دی، لکه: ښوونه، روزنه، ټولنیز نظم او سمون، سیاست،

دين او  داسې نور.
که موږ د انسانانو او ټولنو تاريخ ته نظر واچوو، نو د نفوس د ودې، د کاروبېش او د ټولنې د مختلفو برخو د تفکيک کولو له جريان سره مخامخ کېږو. ښځه او نارينه د فطري او جنسي اړيکو له کبله سره واده کوي او د هغه په پايله کې يو شمير کوچنيان منځ ته راځي چې د دوی دا واده د انسانانو د ډېرښت د نفوس د زياتوالي او د انساني ټولګيو د واحدونو، لکه: قبيله، ډله او لويو او وړو ټولنو د منځ ته راتلو لامل کېږي. لومړنيو انسانانو يوازې له ښځې او بچيانو سره ژوند کاوه، خپلې مادي اړتياوې به يې د ښکار، زراعت او د ساده کورونو او وسايلو په ذريعه پوره کولې، خو د خلکو او نفوس د زياتوالي له امله انسان په لويو ډلو کې نورو مرستو ته اړتيا پيداکوي. د لويو ډلو په اساسي برخو کې چې بايد د انسانانو اړتياوې پوره شوي وای د کار ټولنيز وېش منځ ته راځي، د بېلګې په توګه:
• د کاروېش د ښکار، زراعت او دکور جوړولو د وسايلو په برخه کې.
•  د کاروېش له ګټو څخه د دفاع او ساتنې او د حيواناتو او انسانانو د حملو له ګوابن سره د مقابلې د طريقو لپاره.
• د کوچنيانو د ښوونې طريقې په هغو برخو کې چې د هغوی د راتلونکي ژوند لپاره ضروري دي.
د دې ټولنيز و اړيکو په هره برخه کې، يو لړ قواعد او قاعدې منځ ته راځي چې ورو ورو تثبيت او پوره کېږي چې په منظمه او سمون ورکړ شوې توګه اړوندو موخو او د اړتياوو د پوره کولو لپاره عمل کوي. د بيلګې په توګه: انسان ډير ژر متوجه شو چې هغه تجربې او پوهه يې چې د ژوند په اوږدو کې لاس ته راوړې ده نه بايد له ده سره يو ځای په ګور کې تر خاورو لاندې شي چې بيا يې اولادونه له صفر نه پيل کړي، نود دې پوهې د ليږدولو اقدام يې وکړ او کله چې ورته جوته شوه، د ټولو انسانانو اوګروپونو بريالیتوب د هغو په پوهې پورې اړه لري نو هغه يې ورځ تر ورځې ډېره ښه او په منظم ډول تعقيب کړه.
• د کار د وېش په چوکاټ کې به يو شخص د ښوونکي په نامه د کوچنيانو لپاره ګمارل کيده چې دنده يې يوازې کوچنيانو ته زده کړه وه او عالم شخص ته ځانګړې درناوی کيده.  په دې ډول په هره ټولنه کې ورو ورو ښوونه او روزنه له مشخصو او معلومو قواعدو سره منځ ته راغله.
• همدا رنګه د کار له وېش نه راکړه ورکړه، جنس په جنس تبادله، په بازارونو او د خلکو د راټوليدو په ځايونو کې، په تدريج سره د پيسو، بانکي سيستم او بالاخره د اقتصاد بنسټ منځ ته راغی.

• همدارنګه د کار د وېش په پايله کې د ټولنې د ګټو د دفاع او ساتنې په برخه کې امنيتي بنسټونه، نظامي ځواکونه، د عبادت کولو لپاره د مذهب بنسټ او د توکو او وسايلو جوړولو وروسته ورو ورو صنعت منځ ته راغی. انسان له هغې ورځې نه چې ژوند يې پيل کړی دی، په چارو او کړو وړو يي لاس پورې کړ، د وخت او زمان په اوږدو کې په دې پوه شو چې د زده کړې او پوهې لاس ته راوړلو لپاره کومې لارې، طريقې او سلوک منطقي او ګټور دی. په پايله کې يولړ چارې او کړه چې د ژوند کولو لپاره خورا ښه او مناسب وو، ورو ورو يې په دود او دستور کې ځاي ونيو چې د بنسټونو جوړوونکې دي. له پورتنيو ذکر شوو مطالبونه داسې پايله اخلو چې بنسټ د ټولنيزو اړيکو يو سازمان ورکړ شوی او منظم نظام دی چې ځينې عام ارزښتونه، ګډ جريانونه په ځان کې رانغاړي او ځينو اساسي اړتياوو ته د ځواب ور کولو لپاره منځ ته راغلی دی.

## د لوست تکرار

•..............................................................................................................................
•..............................................................................................................................
•..............................................................................................................................
•..............................................................................................................................
•..............................................................................................................................

## پوښتنې

١- څرنګه چې مو ولوستل: ټولنه د پايښت او دوام غوښتونکې ده، بايد د هغې اساسي اړتياوې پوره شي، دا اړتياوې کومې دي؟ نوم يې واخلئ.

٢- په لاندې ليکل شويو نومونو کې کوم يو ټولنيز بنسټ نه دی؟

الف: کورنی ب: ښونځی ج: بانک د: د دوستانو مجلس

٣- د پخوانيو خلکو د فرهنګي ميراث ليږد اوسنيو نسلونو ته د کوم بنسټ له لارې سرته رسيږي؟

٤- لاندې جملې بشپړې کړئ.

د دې لپاره چې هره ټولنه و کولی شي خپل ژوند ته دوام ورکړي بايد.......................... پوره کړي. د تاريخ په اوږدو کې د دې.................... د پوره کولو لپاره.............. جوړ بنسټ يې موندلی او دوام يې پيدا کړی دی چې هغه ته بنسټ وايي.

٥- اړتياوې د درجې او کچې له نظره په څو ډولونو وېشل شوي دي؟

## کورنۍ دنده

ښوونځی چې د ښوونې يو بنسټ دی، د کومو اړتياو د پوره کولو لپاره منځ ته راغلی دی؟ د دې سؤال ځواب په کور کې وليکئ او بيا يې په ټولګي کې ولولئ.

# ټولنيز بنسټ (۲)



## خبرې پرې وکړئ

تاسو چې د يوې کورنۍ غړي ياست: د دې لپاره چې په ډاډ سره ژوند وکړئ، امنيت ته اړتيا لرئ، د پوهې لپاره ښوونې او روزنې ته اړتيا لرئ، کله چې نا روغه شئ درملنې او علاج ته اړتيا لرئ. ايا دا ټولې اړتياوې يوازې يوه اداره پوره کوي؟ او که ځواب مو نه وي، ايا کولی شئ هغه بنسټونه چې دا اړتياوې پوره کوي، نومونه يې واخلئ؟

څرنګه چې په تېرو لوستونو کې مو زده کړل، ټولنيز بنسټونه د ټولنيزو اړتياوو له امله منځ ته راځي چې دا اړتياوې په دوه برخو: اصلي او فرعي باندې وېشل کېږي. همدا رنګه کولی شو ټولنيز بنسټونه په لومړنيو او دويمه درجه بنسټونو ووېشو. لومړي بنسټونه عمومي او نړيوال دي او ويلی شو چې تقريباً په هر عصر او زمان، په هره ټولنه کې شته او زيات دوام او پايښت لري. لومړني پنځه ګوني ټولنيز بنسټونه دا دي: د کورنۍ بنسټ، د ښوونې او روزنې بنسټ، د سياست او اقتصاد بنسټ او د دين بنسټ. دويمه درجه بنسټونه تر هغه وخته چې اړتيا ورته موجوده وي دوام پيدا کوي او کله چې اړتيا له منځه لاړه شي، ورو ورو او يا په چټکتيا سره له منځه ځي. د دويمې درجې بنسټونو له جملې نه کولی شو د بانکدارۍ بنسټ، د علم او ټکنالوژۍ بنسټ، د روغتيا او درملنې بنسټ ته اشاره وکړو. په دې لوست کې به په هر يو بنسټ رڼا واچول شي.

## د کورنۍ بنسټ

ګرانو زده کوونکو تاسې هر یو په کورنۍ کې نړۍ ته سترګې غړولي دي، د کورنۍ په غیږ کې د کورنۍ د لویانو او خپلوانو تر پالنې او ساتنې لاندې روزل شوي او له ټولنیز ژوند سره آشنا شوي یاست. کېدای شي چې تاسې هم یو وخت د کورنۍ جوړولو اقدام وکړئ.

کولای شوچې کورنۍ داسې تعریف کړو: کورنۍ د هغو وګړو ډله ده چې د خپلوۍ د اړیکو په تړاو یې په مستقیمه توګه پیوند موندلی او د هغې لویان د کوچنیانو د پالنې او ساتنې مسئوولیت پر غاړه لري. کورنۍ د ټولنې یو بنسټیز واحد دی چې د انسانانو له خلقت او پیدایښت سره په یوه وخت پیدا شوی دی. کورنۍ او واده کول د ژوند او انساني نسل د بقا لامل کېږي. په واقعیت کې د نسل نوي کېدل په همدې کورنۍ کې رامنځ ته کېږي. له همدې کبله ده چې په مختلفو ادیانو او ټولنوکې کورنۍ ته زیات اهمیت ورکول کېږي. کورنۍ ته معمولاً د ټولنې اصلي بنسټ ویل کېږي. د دې بنسټ اهمیت له دې کبله دی چې د نسل د نوي کیدو، ټولنې ته د وګړو د منلو (ټولنیز کولو) دنده په غاړه لري او په ټولو ټولنو کې لیدل کېږي. انساني کورنۍ یوازې د نسل زیاتوالی په غاړه نه لري، بلکې په هغې کې د شخصیت وده او د ماشومانو ټولنیز کول هم په نظر کې دي. په یوه انساني کورنۍ کې دیني او اخلاقي قوانین، ډېر لوړ عواطف او احساسات موجود دي. څرنګه چې د انسان د ژوند لومړني کلونه د کورنۍ په چاپېریال کې تېرېږي او په دې دوره کې د هغه د شخصیت بنسټونه ایښودل کېږي. هغه ارزښتونه او کړه وړه چې ماشوم یې د کوچنیوالي په پړاو کې له کورنۍ څخه زده کوي پر هغه باندې ډېر اغېز کوي چې د کوچني په تصمیم نیولو او د هغه د ژوند د بهیر په راتلونکي کې ډېر اهمیت لري چې اغېز به یې د عمر تر آخره پاتې کېږي.

## د ښوونې او روزنې بنسټ

د ښوونې او روزنې بنسټ د ښوونې او روزنې په برخې پورې اړه لري چې د انسانانو د دې برخې

د اړتیاوو د پوره کولو لپاره منځ ته راغلی دی، نو اوس وواياست چې:

**- ستاسې په نظر ښوونه او روزنه د انسانانو په ژوند کې څه اهمیت لري؟**

ښوونه او روزنه په ټوله بشري ټولنه کې یو له با اصولو فعالیتونو څخه شمېرل کېږي، ځکه د هرې ټولنې شتون، ځوان نسل ته د فرهنګي میراث په لېږد پورې تړاولري، ترڅو هغوی د ټولنې له قواعدو او ارزښتونو سره سم تربیه شي او له هغو سره سم چلند وکړي.

د ښوونې او روزنې بنسټ د نورو ټولو ټولنیزو بنسټونو په څېر له یو ټاکلي جوړښت نه برخمن دی او ددې لپاره چې وکولای شي خپلې دندې او کړنې سرته ورسوي، د پلانونو، اصولو، ظوابطو او ځانګړو مقرراتو پیروي کوي. دې بنسټ ډېر شمېر سازمانونه او تشکیلات منځ ته راوړي دي چې وړوکتونونه، ښونځي، پوهنتونونه، د لویانو ښونځي، مدرسې، د داخل خدمت ښوونه، آزاد پوهنتونونه، تګ لارې، پروګرامونه، میتودونه، د تدریس موډلونه، د ښوونکو ښوونیز پلانونه د زده کوونکو او مدیرانو فني او حرفوي ښوونه، ښوونیز تسهیلاتي وسایل، تجهیزات او داسې نورې یې ښکاره بېلګې دي. سربېره پردې د ټولنیزو رسنیو ټول وسایل لکه: راډیو، ټلویزیون، کتاب، ورځپاڼه او مجله، عکس، پوستر، شعرونه، قصې، حکایتونه، متلونه او روایات لنډه دا چې هر هغه شی چې په یو ډول نه یو ډول د افرادو په ښوونه او روزنه کې اغیزناك وي هم د ښوونیز او روزنیز نظام یوه برخه ګڼل کېږي. په یوه جمله کې دا چې ښوونه او روزنه له زانګو تر ګوره دوام لري. له همدې امله فرهنګي میراث له یوه نسل نه بل نسل ته انتقا لیږي. همیشه یو نوی شی په هغه ورزیاتیږي او شتمن کېږي. ښوونه او روزنه یوازې هغه بنسټ دی چې د ماهر او متخصص انساني ځواك روزنه یې پرغاړه ده او د اړوندو رولونو، وړتیاوو او روزنې له لارې هغوي په ټولنه کې د ژوند کولو لپاره چمتو کوي، مختلفو قومونو او د مختلفو فرهنګونو لرونکو خلکو ته چې په یوه هېواد کې ژوند کوي د یو واحد ښوونیز او روزنیز نظام د مطالبو او مفاهیمو انتقال یووالی او پیوستون رامنځ ته کوي.

## اقتصادي بنسټ

د یوې ټولنې مهمې او فوري اړتیاوې د هغې ټولنې د خلکو د اساسي فزیولوژیکو ضرورتونو پوره کول دي. ټول انسانان د دې لپاره چې ژوندي پاتې شي کالوري، صحي اوبو، استوګنځي او کالیو ته اړتیا لري. هیڅ داسې ټولنه په نړۍ کې نشته چې نه ختمېدونکي اساسي سر چینې لکه: خواړه، پوښاک، اوبه، د کور او ساختمانونو د جوړولو مواد او وسایل په اختیار کې ولري.

له کوم ځایه چې دا سرچینې محدودې او کمې دي، نو هره ټولنه باید د دې اساسي منابعو د تولید، ویش او مصرف لپاره له سمو او منظمو لارو او طریقو څخه کار واخلي. په دې ډول هره ټولنه باید یو اقتصادي نظام جوړ کړي. اقتصادي بنسټ د کالیو(توکو) د تولید، وېش او د لګښت رول سرته رسوي او دانسانانو اقتصادي، غذایي او مصرفي اړتیاوې پوره کوي.

## سیاسي بنسټ

ټولنیزو ډلو د خپلې بقا او د هوسا ژوند کولو لپاره د ټولنیز نظم او سمون لپاره ځینې لارې او طریقې رامنځ ته کړي دي. یعنې ټولې ټولنې باید اصول او قواعد جوړ کړي چې په اکثرو وختونو کې له دې قواعدو څخه د خلکو د اطاعت ضمانت وکړي. که چیرته د ټولنې دا ضرورت پوره نه شي، خلک به د یو بل په حقونو سترګې پټې کړي او په ټولنه کې به د کړکېچ او بې نظمۍ لامل وګرځي.

په یقین سره چې مختلفې ټولنې د نظم راوستلو لپاره له بېلا بېلو لارو چارو څخه کار اخلي. لنډه دا چې هره ټولنه داسې یو نظام لري چې خلک د ټولنیزو قوانینو اطاعت ته متوجه کوي. دا رول او دنده سیاسي بنسټ پر غاړه لري چې د ډېر اوږد تاریخ لرونکی بنسټ دی. دولت د

دې بنسټ ښکارندوی دی چې د خپل قدرت سلسله مراتب په ټولنه کې خپروي، د خلکو د چارو په سمون لاس پورې کوي او په ټولنه کې امنیت ساتي.

## ديني بنسټ

مذهبي بنسټونه د مذهب په څرنګوالي پوري اړه لري او د انسانانو معنوي اړتياوې پوره کوي.

**د دين تعريف**: د خدای (جَلَّ جَلاَلُه) د لارښوونو مجموعه ده چې د خپلواک انسان سره د فردي او ټولنيز ژوند په حدودو کې د ښې او سمې لارې په انتخاب کې مرسته کوي. له دې اصطلاح نه مقصد خدای (جَلَّ جَلاَلُه) ته د نژدېوالي سلوک غوره کول او په يوه ټاکل شوې لاره او قالب کې ژوند کول، د الله (جَلَّ جَلاَلُه)د حکمونو بشپړ اطاعت منل دي. په هر دين کې معمولاً ديني بنسټونه د روحانيونو او د دين د عالمانو تر رهبرۍ او مشرۍ لاندې وجود لري. ديني علما او روحانيون هغه کسان دي چې له ديني علومو او مناسکو سره اشنايي لري او مؤمنان په مختلفو طريقو(يعنې د احکامو، عقايدو د زده کړې او په مذهبي مراسمو کې ګډون او داسې نورو) سره د خدای (جَلَّ جَلاَلُه) اوامرو ته رهنمايي کوي. يعنې سړی بايد وکولای شي د خپل مذهب مراسم او فرايض څرنګه چې په شريعت کې راغلي دي سرته ورسوي او په ټولنه کې هغه نظم او سمون چې هيله يې کېږي عملي شي.



### د لوست تکرار

• ..............................................................................................

• ..............................................................................................

• ..............................................................................................

• ..............................................................................................

• ..............................................................................................



### پوښتنې

۱- کورنۍ کوم ډول ټولنيز بنسټ دی؟

۲- کورنۍ د خپلو غړو په وړاندې کوم مسئووليتونه لري؟ اووه مسئووليتونه يې په ګوته کړئ.

۳- اقتصادي بنسټ د ټولنې کومې اړتياوي پوره کوي؟ درې اړتياوې يې په ګوته کړئ.

٤- د فرهنګي ميراث انتقال له يو نسل څخه بل نسل ته د کوم بنسټ له لارې سرته رسېږي. ؟

٥- د ټولنيز نظم ساتنه او د ټولنيزو قوانينو اطاعت ته د خلکو پام اړول د کوم بنسټ پر غاړه دي؟

٦- د دين بنسټ د انسان کومې اړتياوې پوره کوي؟



### کورنۍ دنده

د کورنۍ څو دندې چې په ټولنه کې يې لري، په خپلو کتابچو کې وليکئ او بيا يې د ټولګي پر وړاندې ولولئ.

# ټولنیز بنسټ (۳)



## خبرې پرې وکړئ

ټولنیز بېلابېل کړه وړه لکه، نېک او ښه کړه وړه، بد او نامناسب کړه وړه، لکه: غلا او داسې نور په یوه ټولنه کې لیدل کېږي.

۱- آیا داسې څوک یا منبع شته چې موږ ښو کارونو ته وهڅوي او له بدو کارونو څخه مو منع کړي؟

۲- آیا پوهیږئ د پنځه ګونو بنسټونو دندې په ټولنه کې کومې دي؟

په تېر درس کې مو ولوستل چې په هره ټولنه کې پنځه ټولنیز اصلي بنسټونه وجود لري. دا پنځه اصلي بنسټونه دا دي: د کورنۍ بنسټ، د ښوونې او روزنې بنست، اقتصادي بنسټ، سیاسي بنسټ او مذهبي بنسټ. ټولنیز بنسټونه خپلو موخو ته د رسیدو لپاره باید معلوم کړه وړه ولري.

په دې لوست کې به تاسې د دې بنسټونو په اړه معلومات پیدا کړئ چې څه کړه وړه لري او کومې چارې سرته رسوي.

### د ټولنیزو بنسټونو کړه وړه

هر ټولنیز بنسټ ټاکلي او مشخص کړه وړه لري چې په یوډول نه یو ډول د هغه په ټینګښت او

پایښت کې اغېزناک دي. همدارنګه داسې اساسي او ځانګړې دندې موجودې دي چې هر بنسټ په جلا ډول له هغه څخه برخمن دی. هغه پراخې دندې چې په ټولو بنسټونو کې لیدل کېږي په لاندې ډول دي:

- بنسټونه په مختلفو مو قعیتونو کې د نېکو او ښو ټولنیزو کړو وړو بڼې دانسان په اختیار کې ور کوي. د ټولنیز کېدو له لارې انسانانو ته د ښو کړو وړو لارښوونه کوي او له بدو کړو وړو څخه د ډډې کولو طریقې ورښیي. د بېلګې په توګه: په ښوونځي کې مور ته دا را زده کېږي چې د ښوونځي د قوانینو پیروي وکړو، د مشرانو درناوی وکړو، له ټولګیوالو سره مرسته وکړو، د تقلب او د نورو پر حقوقو له تېري نه ډډه وکړو، د دیني مقدساتو او ارمانونو درناوی وکړو.

- ټولنیز بنسټ د فرد لپاره مختلف رولونه ټاکي. سم او معقول کړه وړه او رولونه انسانانو ته مشخص کوي. یعنې یو سړی مخکې له دې چې ځانته یوه دنده چې د هغه هیله لري وټاکې، کولای شي ځانته د مناسبې دندې د انتخاب تصمیم و نیسي. بنسټونه د ټولنې وګړو ته دا ورزده کوي چې د کړو وړو خو را ښه طریقه او لاره هغه لاره ده چې باثباته او د قانون سره سمه وي، د بېلګې په توګه: خلک په مذهبي بنسټ کې دغړیتوب له لارې د ټولنې باثباته او منل شوي ارزښتونه او عقیدې زده کوي. شرافت او ریښتینولي زده کوي. شرافت، رښتینولي له بې وزلو سره مرسته او د ټولنیز و مقرراتومراعاتول دا ټول د بنسټیزو منل شویو کړو وړو نمونې ګڼل کېږي.

بنسټونه د ټولنیزو کړو وړو په سمون لاس پورې کوي او د هغه نظارت کوي. د بېلګې په توګه: د یو نېستمن سړي لپاره غلا د دې لپاره مناسب کار نه چې دا کار د نورو په حق ظلم او تېری شمېرل کېږي او بل دا چې کیدای شي هغه کار د ده د بندي کیدو سبب شي. د دې پرځای چې د ټولنې له غوښتنو نه سترګې پټې کړي، ښه به دا وي چې یوې خیریه ټولنې او یا د کار لپاره کوم ځای ته ورشي.

یاد شوي پنځه بنسټونه هر یو د یوې ځانګړې موخې لپاره منځ ته راغلی دي او ځانګړي کړه وړه او دندې سرته رسوي چې په لاندې ډول دي:

## د کورني بنسټ ځانګړې دندې (کړه وړه)

- د لومړني ټولنیز بنسټ په توګه د کورنۍ تنظیم او جوړښت.
- د انسانانو د یونسل د ځای ډکول د بل نسل له خوا.
- د کوچنیانو، بې وسو او سپین ږیرو پالنه او لاسنیوني.

- د چاپيريال له خطرونو څخه د وګړو ساتنه.
- د فردي تجربو د تر لاسه کولو لپاره د فرصتونو او امکاناتو برابرول، په فرد کې د روحي او اخلاقي ځواک وده او د کوچني د شخصيت اساسي جوړښت. د کوچني د اړتياو پوره کول لکه: خواړه، پوښاک، استوګنځی، د امنيت احساس، مينه او داسې نور.
- د ټولنې له افرادو سره د پيوستون د حس پيدا کول.
- د ټولنيز ژوند د نن او سبا په اړه هيله مندۍ ايجادول.
- د کوچنيانو ټولنيز کول.
- د وراثت له لارو د وګړو د مقام او منزلت تثبيتول.
- د اقتصادي توليد او مصرف د اساسي برخې د واحد په توګه، د کورنۍ دغړو لپاره د امنيت رامنځ ته کول.

## د ښوونې او روزنې د بنسټ ځانګړې کړه وړه

- د دندو د منلو لپاره د افرادو چمتو کول.
- د فرهنګي ميراث د انتقال د وسيلې په توګه عمل کول.
- له مختلفو نقشونو او دندو سره د ټولنې د افرادو آشنا کول.
- د ځينو ټولنيزو نقشونو او دندو لپاره چې هيله يې لري، د وګړو چمتو کول.
- د علمي څېړنو له لارې په ټولنه کې د بدلون او پر مختګ راوستل.
- له ټولنيزو ارزښتونو سره د وګړو د تطابق د قدرت وده او د ټولنيزو اړيکو اسانتيا.

## د مذهبي بنسټ ځانګړې کړه وړه دا دي:

- د اخلاقي هويت په موندلو کې له اشخاصو سره مرسته.
- د شخص د طبيعي او ټولنيز چاپېريال د بيان لپاره د تفسيرونو راوړل.
- د وګړو ټولنيز ټينګښت او ګروپي پيوستون.
- خلکو ته دا هيله ورکول چې خدای (جَلَّ جَلاَلُه) د بندګانو ژوند په دې نړۍ کې په مړينه نه ختموي، بلکې مړينه د تلپاتې او عادلانه ژوند پيل دی.

## د اقتصادي بنسټ ځانګړې کړه وړه

- د ټولنې د وګړو د اړتيا وړ توکو او خدمتونو توليد.

• د توکو او خدمتونو وېشل د اقتصادي صنايعو (کاراو تجهيزاتو) له وېشلو سره يوځای.
• د توکو او خدمتونو مصرفول.

## د سياسي بنسټ ځانګړي کړه وړه

• د مقننه قوې له خوا د جوړ شوي قانون له لارې د قوانينو او مقرراتو بنسټيز کول.
• د تصويب شوي قانون پلي کول.
• د امنيت خوندي کول.
• په ټولنه کې د غړو ترمنځ د ستونزو او مخالفتو نو حل و فصل.
• د داسې خدمتونو لکه: روغتيا ته پاملرنه، هوساينه، ښوونه او داسې نور سرته رسول.
• د نورو ملکونو د تېري پر وړاندې د هېواد له اتباعو څخه حمايت او د خارجي ګواښونو پر وړاندې د ملت هوښيار ساتل.



### د لوست تکرار

• ..................................................................................................
• ..................................................................................................
• ..................................................................................................
• ..................................................................................................



### پوښتنې

۱- د کوچنيانو ټولنيز کول د کوم بنسټ دنده ده.
۲- د علمي خيړنو له لارې په ټولنه کې د بدلون او پرمختګ راوستل د کوم بنسټ په کړو وړو پورې اړه لري.
۳- په ټولنه کې د خلکو ترمنځ د ستونزو او مخالفتونو حل و فصل د کوم بنسټ په کړو وړو پورې اړه لري، ځواب يې په نښه کړئ.
**الف**: د کورنۍ بنسټ.
**ب**: د دين بنسټ.
**ج**: د سياست بنسټ.
**د**: د اقتصاد بنسټ.



### کورنۍ دنده

تاسې په کومه موخه په ښوونځي کې شامل شوي ياست؟ څو دليلونه يې وليکئ.

# د بنسټونو متقابلې اړیکې



## خبرې پرې وکړئ

په تېرو لوستونو کې مو زده کړل چې په یوه ټولنه کې بنسټونه د خپلو دندو په سرته رسولوکې یو له بل سره تړلي دي او د هغو تر منځ نسبتاً پایداري اړیکې شته. د هر یو بنسټ کار د بل بنسټ د کار تکمیلوونکی دی. اوس ووایاست چې:

آیا بنسټونه کولای شي چې په خپلو کې له همغږۍ پرته یو له بل سره متقابلې اړیکې ولري او د خلکو ټولې اړتیاوې پوره کړي؟ په دې اړه بحث وکړئ.

### په دې لوست کې تاسې د بنسټونو له متقابلو اړیکوسره آشنا کېږئ:

څرنګه چې ټول نهادونه یوه موخه لري چې هغه د خلکو د اړتیاوو پوره کول او پوره هوساینې ته د هغوی رسول دي، نو بنسټونه یو له بل سره تړلي دي. هېڅ بنسټ له بل بنسټ سره له اړیکو درلودلو څخه پرته نشي کولای خپل پایښت او شتون ته دوام ورکړي، ځکه هر یو په بل باندې هم اغیز کوي او هم اغیزمن کېږي. پنځه بنسټونه چې په تېر درس کې مو ولوستل یو له بل سره تړلي دي، د بېلګې په توګه:

واده او د کورنۍ ټینګښت د ټولنې په وده اغیز کوي او د ټولنې وده په ښوونې، روزنې او اقتصاد تاثیر لري. د دې لپاره چې د ټولنې کړه وړه اغیزناک وي د هغه بنسټیز نهادونه باید اغیزناک کړه وړه ولري. یو مناسب او ښه توازن باید د کورنۍ، اقتصاد، سیاست، مذهب او د ښوونې د نهادونو تر منځ موجود وي.

پوهیږو چې یو ماشین هغه مهال ښه کار کوي چې د هغه د پرزو او اجزا و تر منځ ښه همغږي موجوده وي. یوه ټولنه هم کولی شي چې خپلې لارې ته په آسانۍ سره دوام ورکړي او خپلې موخې لاس ته راوړي چې ټول نهادونه په همغږۍ او یو موټي توب سره عمل وکړي.

- ستاسي په فکر! کوم وخت ويلای شو چې په ټولنه کې نظم او همغږي موجوده ده؟ داسې فرض کړئ چې تاسې غواړئ د فوټبال د لوبې ليدلو ته لاړ شئ. د دې لپاره لومړی بايد خپل ځان لوبغالي ته ورسوئ. که چير ته:

- موټر چلونکی ترافيکي قوانين او مقررات مراعات کړي.

- د ترافيکو اداره په خپلو د ندو په ښه توگه عمل وکړي چې موټر چلوونکي په ښار کې په سمه توگه موټر وچلوي.

- ښاروالي خپل کار په ښه توگه سرته ورسوي ترڅو په سر کونوکې د موټر چلوونکيو لپاره ستونزه پيدا نه شي. نو تاسې کولی شئ په آرامه توگه لوبغالي ته ورسيږئ او همدا رنگه د ننوتلو ټکت واخلئ، پخپل ځای کښېنئ، مسابقه ووينئ او بيا په آرامی سره له لوبغالي څخه راووځئ او په موټر کې خپل کور ته لاړ شئ. لکه چې تاسې وليدل د يوې مسابقې په کيدو کې مختلف بنسټونه شامل او يو له بل سره مرسته کوي. دا نهادونه د دندو د سرته رسولو په وخت کې بايد له نورو نهادونو سره د همغږۍ تر څنگه نژدي پيوند او اړيکې ولري، ترڅو يوه مسابقه په ښه توگه اجراشي. له بلي خوا تر کومه ځايه چې نهادونه يو له بل سره نژدې پيوندونه او اړيکې لري يو د بل ودې او تاييد ته لېوالتيا لري، ترڅو وکولی شي چې ټول په ټولنه کې اغيزناك واوسي. همدارنگه هر کله چې په يوه بنسټ کې بدلون راشي، نو له هغه سره جوخت په نورو بنسټونو کې هم تغييرات راځي. له دې کبله کله چې يو نهاد خپل ځيني کړه وړه له لاسه ورکوي او يا نوي کړه وړه لاس ته راوړي، نو لازمه ده چې په هغه بنسټ کې د ننه هم بدلونونه راشي، ترڅو هغه نهاد وکولی شي نوی کار سرته ورسوي.

**فعاليت**: ستاسې په آند که د يوې ټولنې ارمان د هغې ټولنې د اقتصاد رغونه وي، نو د اقتصاد بنسټ په يوازې ډول کولای شي چې نو موړې ټولنه هغې موخې ته ورسوي؟ په دې باره کې خبري سره وکړئ.

هغه اړتياوې چې نهادونه د هغو په بنسټ جوړشوي دي. د ټول ټولنيز نظام د اړتياوو يوه برخه ده. هغه اړتياوې چې يو ښوونځی د هغه پر اساس منځ ته راغلی، د هغو اړتياوو يوه برخه ده چې د هغه پر اساس د ښوونې او روزنې بنسټ منځ ته راغلی. له دې کبله دا ټول نهادونه په عمومي توگه د ټولنيزو اړتياوو د پوره کولو خوا ته ځي. نو ويلي شو چې هر کله د ټولنې ارمان د اقتصاد وده لوړې کچې ته رسول وي، نو بايد ټول ټولنيز بنسټونه له دې موخې سره متناسب عمل وکړي يعنې:

- د ښوونې په بنسټ کې د وړتياوو د لوړولو لپاره بايد انضباط، ډېرکار، کمه طمعه او قانع

کیدل او د سلسله مراتب مراعاتول په دوامداره توګه زده کوونکو ته ورزده شي.

- د ډله ییزو رسنیو وسایل باید ګټور او ښوونیز پروګرامونه خپاره کړي.
- اداري نهاد داسې جوړ شي چې یوازې باید ښه کارکوونکي، د کار اهل او منظم افراد په هغې کې کار وکړای شي.
- په سیاسي بنسټ کې سیاستوال باید ساده او بې الایشه ژوند ولري او هغه پروګرامونه چې د هېواد د اداري لپاره جوړېږي باید ټول په دې موخه تنظیم شوي وي.
- اقتصادي بنسټ په تولید او توزیع کې له همدې موخې سره متناسب عمل وکړي. په دې شرایطو کې دا ټولنه کولی شي خپله موخه یعنې د اقتصادي ودې لوړې کچې ته رسېدل عملي کړي.

## د لوست تکرار

- ..............................................................................................
- ..............................................................................................
- ..............................................................................................
- ..............................................................................................
- ..............................................................................................

## پوښتنې

۱- آیا ټولنیز بنسټ په یوازې توګه او له نورو بنسټونو سره له اړیکو پرته کولی شي د ټولنې ډول ډول اړتیاوې پوره کړي؟

۲- آیا اقتصادي ناورین په یوه هېواد کې یوازې پر اقتصادي بنسټ اغېز کوي، که په نورو ټولنیزو بنسټونو هم اغېز لري؟

۳- که چیرته په یوه بنسټ کې بدلون راشي. آیا په نورو بنسټونو کې هم تغییر راځي؟ د یو مثال په وسیله یې واضح کړئ.

٤- د اقتصاد او د ښوونیزو بنسټونو تر منځه د اړیکو یو څو بیلګې ولیکئ.

## کورنۍ دنده

که چیرته وغواړئ د الوتکې په ذریعه د هېواد کوم ولایت ته سفر وکړئ باید د دې سفر سرته رسولو لپاره له کومو بنسټونو سره اړیکې ونیسئ؟ د دې سوال ځواب په کتابچو کې ولیکئ او بیا یې د زده کوونکو پر وړاندې ولولئ.

## د دریيم څپرکي لنډیز

• هره ټولنه د دې لپاره چې خپل شتون ته دوام ورکړي، باید بیلابیلې اړتیاوې يې پوره شي. د تاریخ په اوږدو کې د دې اړتیاوو د پوره کولو لپاره اړیکې رامنځ ته شوي او دوام يې پیداکړی چې هغې ته ټولنیز بنسټ وايي.

• کولی شو چې ټولنیز بنسټونه په دوه لومړنیو او دویمو ډلو باندې وویشو، لومړي بنسټونه عمومي او جهاني دي او تقریباً ویلي شو چې په ټولو ټولنو کې پیدا کیږي او د ډېر دوام او ثبات لرونکي دي. پنځه ټولنیز لومړني بنسټونه دا دي: د کورنۍ، د ښوونې او روزنې، د دین، اقتصاد او سیاست بنسټونه.

•دویم درجه بنسټونه چې د ټولنې د دوام لپاره ورته اړتیا لیدل کیږي او کله چې دا اړتیاوې لیرې شي، ورو ورو او یا دفعتاً له منځه ځي. د دویمو بنسټونو له جملې کولی شو بانکدارۍ، علم، ټکنالوژۍ او درملنې ته اشاره وکړو.

• کورنۍ د خلکو یوه ډله ده چې د خپلوۍ د اړیکو سره مستقیماً تړاو لري او د هغې لویان د کوچنیانو د پالنې مسئوولیت لري.

• ښوونه او روزنه یوازې هغه بنسټ دی چې د متخصص او ماهر ځواک وده پر غاړه لري او د زده کړې له لارې هغوی په ټولنه کې ژوند کولو ته چمتو کوي.

• هره ټولنه یو اقتصادي نظام لري او اقتصادي بنسټ دی چې د تولید، توزیع او د توکو د مصرف جریان تنظیموي او د انسانانو اقتصادي، غذایي او مصرفي اړتیاوې پوره کوي.

• هره ټولنه د یو نظام لرونکې ده چې خلک د قوانینو اطاعت ته متوجه کوي او دا رول سیاسي بنسټ سرته رسوي چې په ټولنه کې د نظم او سمون دنده پر غاړ لري چې دولت د دې بنسټ کارندوی دی.

• پوهیږو چې یو ماشین هغه وخت ښه کارکوي چې د پرزو او اجزاو ترمنځ يې همغږي او نظم موجود وي. یوه ټولنه هم هغه وخت کولی شي په آرامۍ سره خپلې لارې ته دوام ورکړي او خپلو موخو ته ورسیږي چې ټول بنسټونه په همغږۍ او یو موټیتوب عمل وکړي.

# څلورم څپرکی

## پراختیا(توسعه)

په دې څپرکي کې لاندې لوستونه لولئ:

۱- پراختیا څه ته وايي؟

۲- فرهنګي پراختیا.

۳- ټولنیزه- سیاسي پراختیا.

۴- اقتصادي پراختیا.

۵- د پراختیا او د بېرته پاتېوالي عوامل.

۶- پراختیا او د ژوند چاپېریال.

# د ښځې کي موخې

زده کوونکي به د دې څپرکي په پای کې:

- د پر اختيا په مفهوم پوه شي.
- د پر اختيا برخې و پيژني.
- د فرهنگي پر اختيا په اړه معلومات لاس ته راوړي.
- د ټولنيزې او سياسي پر اختيا په اړه معلومات پيدا کړي.
- د اقتصادي پر اختيا د برخو په اړه معلومات پيدا کړي.
- د پراختيا او د وروسته پاتېوالي د علت او عواملو د څېړنې او تحليل وړتيا پيداکړي.

# پراختیاڅه ته وایي؟



په تېر درس کې مو ولوستل چې د تاریخ په اوږدو کې د انسانانو د اړتیاوو پوره کولو لپاره اړیکې پیدا شوې او ادامه یې پیدا کړې ده چې هغو ته ټولنیز بنسټ وایي. په دې څپرکي کې به تاسې ولولئ چې دې موخې ته رسېدل د هر ملت او ټولنې هیله او ارمان دی.

## خبرې پرې وکړئ

تاسې د(پراختیا، ودې او صنعتي کېدل) اصطلاحات په ژوندکې ډېر اورېدلي دي او له هغو سره آشنا یاست، اوس وواياست چې:

- پراختیا څه ته وایي؟ پر اختیا ته رسیدل کوم وضعیت او ځانګړو شرایطو ته ویل کېږي؟

پراختیا د ډېرو هېوادو لپاره یوه ارماني موخه ده. ټول وروسته پاتې هېوادونه هیله لري چې خپل مادي، انساني، معنوي توان او ظرفیتونه لوړ کړي او د انساني، اقتصادي، سیاسي، اجتماعي، فرهنګي او اداري ظرفیتونو او وړتیاوو له پلوه یو ځواکمن دولت واوسي. د سالمو، متخصصو، باتدبیره او فعالو انسانانو درلودل او د پراخو بنسټیزو صنایعو، ارتباطي لارو، پرمختللې پست، بندرونو، د حمل او نقل مجهز وسایلو، صحي خدمتونو او د صنعتي نرۍ په کچه نوي ښوونې او روزنې او داسې نورو درلودل د مخ په ودې هېوادونو مطلوبه موخه او ارمان دی.

**آیا پوهېږئ پراختیا، وده، صنعتي کېدل او بیارغونه څه شی دي؟** دوه اصطلاح ګانې وده او پراختیا زیاتره وخت د یوې معنا لپاره کاریږي چې دا سمه نه ده. وده یو اړخیزه معنا ورکوي او هغه د ټولنې د ثروت د ډېرښت کمیت راښیي او معمولاً په ځینو نښو نښانو، لکه: د سرې سر عاید باندې سنجول کېږي، خو پراختیا چې وروسته به هم ورته اشاره وشي د ټولنې د شتمنۍ د اندازې له ډېرښت سره سره، د ټولنېز، سیاسي، اقتصادي او فرهنګي نظام کیفي تغییر هم له ځانه سره لري.

**صنعتي کېدل** د دوامدارې او مخ په زیاتیدونکې ګټې ورکولو په معنا دي چې د کار له قدرت، ځواک او د تخنیکي نوښتونو او منظمو کاري سازمانونو له ګټې اخیستلو نه لاس ته راځي. په دې توګه صنعتي کیدل د اقتصادي پراختیا یوه برخه ده.

## د پراختیا اصلي معنا

پراختیا په لغت کې د تدریجي پرمختګ، ځواکمنۍ او حتی لویوالي خوا ته د ودې کولو په معنا ده. همدارنګه پراختیا د پراخوالي په معنا هم ده. پراختیا په لغت کې له پوښ نه راوتل دي او د بیارغونې له نظره پوښ (لفاف) هغه تړلې فرهنګي ټولنه او په هغې پورې اړوند ارزښتونه دي چې ټولنه باید پرمختګ ته د رسېدو په موخه له دې تړلې مرحلې څخه ووځي.

له دوهمې نړیوالې جګړې وروسته د پراختیا ادبیات په نړۍ کې مطرح شول او وده یې وکړه. **عالمانو او ټولنپوهانو پراختیا د هوساینې د موخو په لور د پرمختګ، له وروسته پاتې کیدو نه د لریوالې د فقر او بېکارۍ له منګلو نه خلاصون، د نابرابریو د کچې ټیټول، صنعتي کیدل، اړیکې او د داسې ټولنیز نظام جوړیدل بولي چې د عدالت او په روانو سیاسي چارو کې د خلکو پرګډون ولاړ وي.**

همدارنګه په دې ځانګه کې د نظر خاوندانو د پراختیا په اړه په خپلو کتابونو او مقالو کې ځینې مطلبونه بیان کړي دي او پراختیا یې د ټولنې تېریدل له وروسته پاتې حالت  څخه د پرمختګ حالت ته او د ټولنې حرکت له پخواني وضعیت نه د ښه او مناسب وضعیت خواته بللی دی چې دا حرکت ځانته  اصول او معیارونه غواړي. لومړنی شی چې د سم حرکت موخې ته د رسېدو لپاره لازم دی، هغه پېژندنه، پلان درلودل او دا پلان او موخې باید په یو سم قالب کې منظم شوې وي. لنډه دا چې د سمې او مطلوبې ټولنې لپاره دا لاندیني نښې او معیارونه لازم دي:

۱- د ټولنې مشر باید فاسد او ظالم نه وي، ځکه که په ټولنه کې ظلم موجود وي بیا به حرکت منځ ته رانه شي.

۲- انسانان باید پر نفس باور ولري او تقلیدي فکر  ونه لري.

۳- د انسان ښوونې او روزنې ته پاملرنه وشي.(د انسان روزنه)

سربېره پر دې چې پراختیا په خپل جوړښت کې د تولید او عاید د کچې لوړوالی لري، همدارنګه د ټولنیزو، اداري بنسټونو او د خلکو د عمومي افکارو او نظریاتو د جوړښت په اساسي بدلونونو

کې هم برخه لري. پراختیا په ځینو وختونو کې د خلکو رسوم، عادات، عقاید او دودونه هم له ځانه سره لري.

## فکر وکړئ او ځواب ورکړئ

پراختیا ته رسیدل کومو شرایطو ته ویل کیږي؟ او د کومو اړخونو درلودونکې ده؟
د دې سوال ځواب به تاسې په دې لوست کې ومومئ.

## د پراختیا ځانګړتیاوې

پراختیا په ساده ډول په ټولو ټولنو کې هغه وضعیت ته وایي چې لږ تر لږه درې شرطه یا موخې ولري.

**لومړۍ موخه**: هغو موادو او خدمتونو ته لاسرسی چې د انسانانو د ژوند کولو لپاره ضروري دي لکه: خواړه، پوښاک، استوګنځی، په دې برخه کې نه یوازې د دې موادو او توکو د کمیت او اندازې زیاتوالی په نظر کې دی، بلکې په عادلانه توګه د ټولنې فرد فرد ته باید توزیع او وویشل شي.

**دویمه موخه**: د ژوند د سطحې او معیارونو لوړېدل او له مادي او معنوي نعمتونو څخه د انسانانو ګټه پورته کول دي. لوړ عایدات، اغېزناکه درملنه، باکیفیته ښوونه، پوره امنیت او فرهنګي او انساني ارزښتونو ته پاملرنه چې د ژوند په پرمختګ کې مرسته کوي، په ملي  او فردي کچه ډېر درناوی او عزت نفس منځ ته راوړي.

**درېیمه موخه**: په بشپړه توګه کیفي ماهیت لري، چې په ژوند کې د افرادو او ملتونو د ټاکنو او انتخابولو د لمنې پراخول، د افرادو د مدني حقونو لوړول، د فکر آزادي، د قانون په وړاندې برابري، د تبعیضونو له منځه وړل او د هر ډول قید، بند او مریتوب نه خلاصون او داسې نور دي.

## د پراختیا ابعاد (اړخونه)

پراختیا یو پېچلی، مرکب او څو اړخیزه بهیر دی. دا بهیر هغه وخت تحقق پیدا کوي او عملي کیږي چې په ټولنیز جوړښت، د خلکو د عامه ذهنیت او ملي نهادونو کې اړونده تحقیقات سرته ورسیږي او د هغوی له څنګه اقتصادي ودې ته چټکتیا ورکړل شي، نا برابري کمه شي او د مطلق فقر جرړې وایستل شي.

دا بهیر نه یوازې د تولید زیاتوالي او پراختیا ته پاملرنه کوي، بلکې د تولید ښه والی او کیفیت هم په

نظر کې لري. د یوې ټولنیزې پدېدې په توګه داسې فکر کیده چې پراختیا یو اقتصادي جریان دی او د اقتصادي مطالعاتو په ساحه کې ځای لري. خو د ټولنیزې سیاسي پراختیا په اړه ډېرو مطالعاتو وښودله چې اقتصادي وده یوازې د پراختیا یو اړخ دی او د دې پدېدې نور اړخونه ټولنیز، سیاسي، فرهنګي مخصوصاً د انساني څواک عوامل تشکیلوي. پراختیا هغه وخت هر اړخیزه او دوامداره ده چې وکولی شي د ژوند ټولې برخې تر پوښښ لاندې راولي.

پراختیا د بدلون او تغییر بهیر دی چې نه یوازې اقتصادي برخې، بلکې ټولنیز نظام، سیاسي سازمان او فرهنګي ساحې له ځانه سره لري چې انساني کړو وړو ته په ټولنه کې وده ورکوي.

دوامداره او هر اړخیزه پراختیا اقتصادي، ټولنیزې، سیاسي، فرهنګي او ټکنالوژیکي خواوې لري چې په راتلونکو لوستونو کې د پراختیا په دې اړخونو پوره رڼا اچول شوې ده.



### د لوست تکرار

- ........................................................................
- ........................................................................
- ........................................................................
- ........................................................................
- ........................................................................



### پوښتنې

۱- د پراختیا موخې کومې دي؟ په لنډ ډول یې بیان کړئ.
۲- ایا پراختیا د اقتصادي ودې جریان دی او که اقتصادي وده یوازې د پراختیا یو اړخ دی؟
۳- یوې ښې ټولنې ته د تېریدو علامې او نښې کومې دي؟
٤- پراختیا تعریف کړئ.
٥- هغه هېوادونه چې د پراختیا په حالت کې دي کومې موخې باید مخ ته بوځي چې پراختیا ته د رسېدلو هېوادونو سطحې ته ورسیږي؟
٦- سرې سرعاید او ملي ناخالص عاید څه شی دی؟



### کورنۍ دنده

په هغه سیمه کې چې ژوند کوئ د ټولنیزې، اقتصادي، سیاسي او فرهنګي پراختیا څو بیلګې ولیکئ.

# فرهنګي پراختيا



په تېر لوست کې مو ولوستل چې دوامداره با ثباته او هر اړخيزه پراختيا ټولنيز، اقتصادي، سياسي او فرهنګي اړخونه لري. په دې لوست کې به له هغو اړخونو څخه فرهنګي پراختيا ولولئ.

## فکر وکړئ او ځواب ورکړئ

لاندينی پوښتنې په ځير سره ولولئ او خبرې پرې وکړئ.

**۱- ستاسې په فکر! د فرهنګي پراختيا معنا څه ده؟ او ولې فرهنګي پراختيا د اصلي او دوامدارې پراختيا بنسټ جوړوي؟**

**۲- فرهنګي پراختيا د يوه هېواد په ملي پراختيا کې څه رول لوبولی شي؟**

اوس ډېر خلک په دې نظر دي چې د هر ډول پراختيا اساس فرهنګي پراختيا ده او له هغه ځايه چې د دولتونو اصلي موخه هر اړخيزې پراختيا ته رسېدل دي. د دې پراختيا بنسټ انسان (فرهنګي موجود) دی، له دې کبله د دوامدارې او حقيقي پراختيا زيربنا به هم فرهنګي پراختيا وي. فرهنګ د ټولنې بنسټ جوړوي او هره ټولنه څومره چې نوې هم وي د هغې دوام او پايښت په فرهنګي اصولو پورې تړاو لري چې د هغې ټولنې د افرادو هويت جوړوي. له دې امله په هره ټولنه کې هويت ورکوونکی رکن د هغې فرهنګي مخينه او فرهنګي زيرمې، آثار او

شتمنئ دي. دې مطلب ته په پاملرنه او په همدې ټکي باندې په ټینګار سره د یو هېواد مشران او مسؤولان باید فرهنګ د اساسي ارکانو په جمله کې وشمېری او هغه ته دې د موخو، اوږد مهاله او پراخو سیاستونو په جوړولو او پلي کولو کې ځانګړی مقام ورکړي. د هرې ټولنې فرهنګ، د ټکنالوژئ د پرمختګ کچه، تولید، ښوونه، علم او خبر تیا (آګاهي) د ټولنیزې ودې د ځانګړې دورې ادبیات راښیي. پراختیا یوه حیاتي او ډېره مهمه اړتیا ده په دې شرط چې د ښوونې او روزنې، ګډون (مشارکت) او د انسان د اساسي اړتیاوو د پوره کولو او په ځانګړې توګه د فرهنګ ودې ته لاره هواره کړي. دلته دا پوښتنه پیدا کېږي چې:

## څنګه کولی شو فرهنګي پراختیا پلي کړو؟

فرهنګي پراختیا له هغو مفاهیمو څخه ده چې د پراختیا د ټولو برخو لکه:د اقتصادي ټولنیزې او د سیاسي پراختیا په پر تله له زیاتو ارزښتونو څخه برخمنه وي چې د ټولنې د افرادو له غیر مادي اړتیاوو سره زیات سروکار لري.

د هرې ټولنې وروستی موخه ودې او پراختیا ته رسېدل دي. که ملي پراختیا ته رسېدل په هېواد کې پراختیا د لوړ ارمان په توګه په نظر کې ونیسو، له دې کبله سیاسي، ټولنیزه، اقتصادي او فرهنګي پراختیا د پراختیا بنسټیزې او اصلي ستنې بلل کیږي. په دې ټولو کې د فرهنګي پراختیا رول حساس او څرګند بریښي. ځکه هېڅ ډول ټولنیز او سیاسي بدلون له مناسبو فرهنګي شرایطو او بنسټونو پرته ممکن نه دی. پراختیا د ملي او سیمه ییزو فرهنګي محصولاتو او لاسته راوړنو ساتنې ته اړتیا لري. ځکه چې فرهنګي لاس ته راوړنې د خپلواکې پراختیا لپاره ډاډمنې ضمانت کوونکې دي. ځکه چې فرهنګي هویت ځواکمنوي او د فرهنګي میراث په بنسټ د خلکو د نوښت او خبرتیا ځواک لوړوي، له دې امله هغه ځانګړتیاوې چې پورتنی تعریف یې فرهنګ، ټولنې او یو ټولنیزې ډلې ته ورکوي، نه شو کولای چې فرهنګ د پراختیا یو فرعي یا ښکلا ورکوونکې اړخ وبولو، بلکې هغه د ټولنې اصلي قدرت او ځواک ګڼل کیږي.

**ستاسې په فکر! خلک د ټولنې په وروسته پاتېوالي، پرمختګ او پراختیا کې څه رول لري؟**

غیر فعاله او وروسته پاتې ټولنه د وروسته پاتې او غیر فعالو وګړو د شتون نښې نښانې دي او یوه خوځنده، پرمختللې او فعاله ټولنه د هغې ټولنې د وګړو د خوځښت، هوښیارۍ او تکړه توب نښې دي دا سمه ده چې وايي: د یوې ټولنې زوال د هغې ټولنې د وګړو له زوال څخه پیدا کېږي، لکه څرنګه چې د ټولنې د حرکت او خوځښت سیاست هم د ټولنې د وګړو د هڅو، خوځښت بلل کېږي.

انسانان د تاریخ په اوږدو کې نن ورځ له هر وخت نه لوړې او پرمختللې ټکنالوژۍ ته لاسرسی لري. دا د پاملرنې وړ ده چې د دې ټکنالوژۍ نه د ګټې اخیستلو په لړ کې د ولسي فرهنګ د ارزښتونو تبادله او درک په نظرکې ونیول شي. د دې ارزښتونو له پامه غورځول او نه پېژندل د ټولنې بې هویتې څرګندوي او ټولنه د زوال خواته بیایي. له همدې کبله د ټولو هېوادونو فرهنګي، تاریخي او طبیعي میراثونه د نړۍ د وګړو د فرهنګي ارزښتونو د سرچینو او معنوي لاسته راوړنو په توګه ګڼل کېږي او د هغو ساتنه د هر متمدن انسان دنده او مسلم حق دی. افغانستان د داسې یو هېواد په توګه چې پنځه زره کلنه فرهنګي روښانه او ځلانده مخینه لري، د فرهنګي پراختیا لپاره د لویو ظرفیتونو لرونکی دی. خو د درې لسیزو جګړو او ګډوډیو په جریان کې دې هېواد لازم فرصتونه له لاسه ورکړل. د افغانستان اسلامي دولت، خلک، ځوانان او د دې خاورې هر وګړی دنده لري چې د خپل فرهنګ ملي او اسلامي ارزښتونه وساتي، هغه لاشتمن کړي او خپل با ارزښته فرهنګ د پردیو له تېریو څخه وساتي.هېره دې نه وي چې د فرهنګي پراختیا په هکله د نړۍ د مختلفو هېوادونو د تجربو، مخصوصاً د هغو تجربو پر وړاندې چې بریالۍ دي او په هغوی کې درسونه او پندونه موجود دي، بې تفاوته پاتې نشو. دا ټکي باید هېر نه کړو چې د هیڅ ټولنې نسخه نه شو کولای په بل هېواد باندې عملي کړو.دا په دې معنا چې کېدای شي داسې تجربې چې د یوه هېواد په ګټه وي د بل هېواد لپاره به ښې پایلې ونه لري.



## د لوست تکرار

- ..................................................................................................
- ..................................................................................................
- ..................................................................................................
- ..................................................................................................
- ..................................................................................................



## پوښتنې

۱- فرهنګي پراختیا تعریف کړئ

۲- ولې پراختیا د فرهنګي محصولاتو دسیمه ییزو لاسته راوړنو ساتنې ته ضرورت لري؟

۳- ټولنیزې اړیکې په فرهنګي پراختیا کې څه رول لري؟

٤- آیا دیو هېواد فرهنګي پراختیا په اړه کولی شو، د مختلفو هېوادونو له تجربو څخه ګټه واخلو؟



## کور نۍ دنده

د هېواد د فرهنګي پراختیا او د ښوونځي د زده کوونکو د رول په اړه څو کرښې ولیکئ او بیا یې د ټولګي پر وړاندې ولولئ.

# اجتماعي- سياسي پراختيا



خبرې پرې وکړئ

## ټولنيزه پراختيا څه شی ده؟

څرنگه چې پوهيږئ پراختيا يوازې هغه وخت د دوام او پرمختگ وړ ده چې له دې برخې يا جريان نه گټه اخيستونکي ورو ورو او په تدريج سره د دې جريان څښتنان شي. په دې معنا چې پلانونه او پروگرامونه نه شو کولای يوازې د اقتصاد لپاره تر بحث لاندې ونيسو، بلکې بايد يو هر اړخيز پلان په نظر کې ونيسو چې اجتماعي، روغتيايي او عمومي آسانتياوې لکه: د فرهنگي ميراثونو ساتنه،پلان جوړونه او ښاری بيا رغونه، د کليو او بانډو پراختيا، د اوبو او انرژۍ اداره کول، د چاپيريال ساتنه او حتی د سياست جوړولو او قانون جوړولو پراختيا، هغه مهم توکي دي چې بايد په پام کې ونيول شي. هغه شرايط او ټولنيز لاملونه چې د ودې او پراختيا په جريان کې د پاملرنې وړ دي په لاندې ډول دي.

۱- د مطلقې نيستی د له منځه وړلو پلان چې په خواشينۍ سره د نفوسو ډېره برخه ورسره لاس او گريوان ده.

۲- د اساسي اړتياوو لکه: خواړه، استوگنځی، د سون مواد، کالي او ځينې ټولنيزې اړتياوې لکه: د انساني حقونو، زده کړې او دندې (اشتغال) لپاره د لارې هوارول او په ټولنيز ژوند کې د سياسي او ټولنيزو موقفونو او نقشونو لاس ته راوړل، د ټولنيزې هوساينې او عدالت راوستل د دې ستراتيژۍ په مرکز کې ځای لري. په دې معنا چې مادي سرچينې بايد د ټولنې د ټولو افرادو په منځ کې په مساوي توگه وويشل شي.

دا ستراتيژي په کليو کې د لاندينيو چارو د سرته رسولو سپارښتنه کوي:

۱- بې ځمکو او نیستمنو بزگرانو ته د ځمکو ورکول.
۲- په کمه بیه او یا په وړیا توگه د کرنیزو اعتبارونو او امتیازونو ورکول.
۳- د ځمکو د اصلاحاتو سرته رسول.

## فکر وکړئ او ځواب ورکړئ

**- ستاسې په آند کوم لاملونه له کلیو څخه ښارته د خلکو د مهاجرت سبب کېږي؟**

**- مهاجرتونه په ښار کې کومې ستونزې جوړولای شي؟**

لاندیني لاملونه ښايي ښار ته د خلکو د مهاجرت سبب شي:

- بیکاري.
- ناسم پراختیایي سیاست او د پلان جوړونې کمزوري، ښايي په یو هېواد کې ښار ته د خلکو د مهاجرت سبب شي.
- د درملنې، زده کړې او د لوړ مقام نه درلودل.
- د کرنیزو ځمکو لږوالی، د ټولنیز امنیت نشتوالی، قومي او قبیلوي اختلافات.
- د دولت د پلان جوړونې نشتوالی.
- په کلیوالي سیمو کې د پانگوالۍ نشتوالی، د ناعادلانه وېش سیاست، د فرصتونو او امکاناتو نه درلودل هغه عوامل دي چې له کلیو څخه ښار ته د خلکو د مهاجرت سبب کېږي.

د ښار خوا ته د کلیو د خلکو مهاجرت پر فرهنگي، اقتصادي او اجتماعي نامطلوبو اغیزو سربیره په مهاجرینو رواني او روحي فشارونه هم راولي. له هېواد نه جلا والی او نوي چاپېریال ته له ورتگ سره، مهاجرین له یو ډول پردیتوب او جلاوالي سره مخامخ کېږي چې دا عامل کیدای شي د ټولنیزو انحرافاتو او ناخوالو سبب شي. په ځانگړې توگه د وزگارتیا او نیستۍ موجودیت دی کار ته لمن وهي.

دلته پوښتنه پیدا کېږي چې څنگه کیدای شي د دې مهاجرتونو مخنیوی وشي؟ له هغه ځایه چې د انسان ټول فعالیتونه د هغه دارِ تیاوو د پوره کولو لپاره سر ته رسېږي، نو د مهاجرینو مهاجرت ښارونو ته هم یو ښه او با کیفیته ژوند ته د رسېدو په هیله سرته رسېږي. دا ډېره ضروري ده چې دولتونه او حکومتونه دې د کلیوالو سیمو لپاره په خپلو سیاستونو او پلان جوړولو کې له اقلیمي، ټولنیزو، فرهنگي او سیاسي عناصرو سره پېژندگلوي پیدا کړي. داسې څېړنه او پېژندنه به د خورا ښې پلان جوړونې لامل شي چې د سیمې له اړتیاوو سره تړاو ولري او د لاس ته راوړل شوو پانگو د ضایع کیدو مخنیوی به وکړي.

همدارنګه که تعلیم، کار او درملنه په کلیو کې دود شي او د کلیو د خلکو د ژوند د کیفي کچې لوړوالی د ښار د اوسېدونکو په څېر په نظر کې ونیول شي، په هغه صورت کې مهاجرت له منځه ځي. له بلې خوا که چېرته د مالدارۍ او کرنیزو تولیداتو ساتنه وشي او محلي صنایعو ته د دولت په مرسته مناسب بازارونه پیدا شي نو کیدای شي په کلیوالو اغېز وکړي او په کلیو کې ژوند تېرولو ته زړونه ښه کړي.

## سیاسي پراختیا

سیاسي پراختیا له هغو مفاهیمو څخه ده چې له دویمې عمومي جګړې وروسته د پراختیا په ادبیاتو کې مطرح شوه. د دې اصطلاح په اړه مختلف نظرونه موجود دي. د ځینو افرادو له نظره سیاسي پراختیا له داسې سیاسي شرایطو نه عبارت ده چې د اقتصادي او صنعتي پراختیا لپاره لازمي او اساسي شرطونه ګڼل کېږي. له دې کبله که چېرته سیاسي او حکومتي شرایط چې د اقتصادي فعالیتونو د عملي کولو لپاره لازم دي منځ ته راشي او سیاسي نظام د ټولنې ودې او پرمختګ ته سرعت ورکړي، د سیاسي پراختیا د تحقق په لاره کې به مخ پر وړاندې لاړ شي چې دا حالت د بنسټ د ودې مثبت اړخ ښیي، خو که سیاسي نظام ونه شي کولی دا موخه لاس ته راوړي، نو په یوه ژوره کنده کې به ولوېږي.

## د سیاسي پراختیا مثبت اړخونه (شاخصونه) په لاندې ډول دي

۱- دولتي حاکمیت یا د هېواد یو موټی توب.

۲- د ملت تشکل یا ملي یو موټی توب.

۳- د رایې د حق زیاتوالی او آزاد انتخابات چې په هغه کې ډېر شمېر رایه ورکوونکي ګډون وکړي.

٤- سیاسي کیدل یا په سیاسي جریانونو کې د خلکو فعال ګډون.

٥- په تصمیم نیولو کې د خلکوګډون.

٦- د خپلواکو ګروپو نو زیاتېدل.

۷- د مطبوعاتو آزادي او د ډله ییزو رسنیو وده.

۸- د زده کړې د امکاناتو پراخول.

۹- د قانون جوړوونکو د رول اغېزمنتیا او د ملت د نماینده ګانو رغوونکي خدمتونه.

۱۰- د خلکو د شکایتونو پلټنې او حل لپاره د ځواکمنو سازمانونو رول.

## په پراختیا کې د ښځو رول

د یوه ملت د پراختیا او ملي پرمختګ پروسه د ښځو له حضور او فعال ګډون پرته له مشکل سره مخامخ کېږي ځرنګه چې ویل کیږي ښځې د بشري ټولنې نیمه برخه ده او د دې وس لري چې د پراختیا په رامنځ ته کېدو کې ښه رول ولوبوي. په دې شرط چې هغوی د اسلامي عقایدو، قواعدو او ارزښتونو په چوکاټ کې د تاریخ د یو خوځنده ځواك په توګه د سیاسي، ټولنیز، اقتصادي او فرهنګي ژوند صحنې ته ورداخلې شي. ښځې د کورنۍ، ټولنې او نړۍ د پرمختګ کیلي ده. د پرمختګ د عمومي انکشاف ضمانت کوي. ځرنګه چې لیدل کېږي د افغانستان زیاتره ښځې نالوستې دي او له انکشافي جریانونو څخه لېرې دي. ځرګنده ده چې د دې نالوستو ډېرکیو په ځنډ او ورو حرکت د ملي کاروان سرعت د پراختیا او ملي پرمختګ په لوري کموي. له دې کبله له هر څه د مخه باید د ښځو پرمختګ ته ډېره پاملرنه وشي چې د نسلونو بنسټ ایښودونکي او د پرمختګ بنسټ جوړوونکي دي.



### د لوست تکرار

- ..........................................................................................
- ..........................................................................................
- ..........................................................................................
- ..........................................................................................



### پوښتنې

۱-کومو ټولنیزو شرایطو او عواملو ته باید د ودې او پراختیا په بهیر کې پاملرنه وشي؟

۲- د دې لپاره چې مادي سرچینې په کلیوالو سیمو کې عادلانه ووېشل شي، باید کوم کارونه سرته ورسیږي؟

۳- هغه عوامل چې ښار ته د کلیوالو د مهاجرت لامل کېږي کوم دي؟

٤- د پراختیا د مثبتو نښو او اړخونو نومونه واخلئ؟

۵- د یو هېواد په ملي پرمختګ او پراختیا کې د ښځو رول څه شی دی؟



### کورنۍ دنده

د سیاسي پراختیا هغه خصوصیات او اړخونه مو چې په لوست کې ولوستل په کتابچوکې ولیکئ او هغه اړخونه چې زموږ په هېواد کې عملي شوي دي، د (هو) او هغه چې نه دي عملي شوي د (نه) په کلمو نښه کړئ او د ځواب دلیل مو ووایاست.

# اقتصادي پراختيا




## خبرې پرې وکړئ

په تېر درس کې مو ولوستل چې پراختيا هغه وخت هر اړخيزه او دوامداره وي چې ټولنيزه، اقتصادي، سياسي، فرهنګي او د ټکنالوژۍ پراخې خواوې او برخې ولري. بنايي د تېرو لوستونو له مطالبو او محتواو نه مو د ټولنيزې، فرهنګي او سياسي پراختيا په اړه څه نا څه زده کړې وي.

په دې لوست کې به تاسې د پراختيا اقتصادي برخه ولولئ.

لاندې پوښتنو ته په څېر سره ځواب ورکړئ.

۱- که چېرته يوه کورنۍ د هغه عايد په پرتله چې لاس ته يې راوړې زيات لګښت وکړي، څه پايله به ولري؟

۲- ستاسې په سيمه کې د وزګارتيا علت څه شی دی؟

له ډېرو پخوا زمانو را پدې خوا د بشر د پوهې د کچې د لوړوالي په پايله کې، د انسان د ژوند کيفيت او وضعيت په دوامداره توګه د ښه والي او لوړېدو په حالت کې دی. په اروپا کې له فرهنګي او اجتماعي انقلاب(رنسانس) وروسته او بيا د صنعتي انقلاب په پايله کې د غربي هېوادونو چټک پرمختګونه پيل شول. يوازې هغه شرقي هېواد چې د نولسمې پېړۍ په آخر او د شلمې پېړۍ په پيل کې د ودې په بهير کې ور داخل شو جاپان و. وروسته د رنساس له دورې څخه چې په اروپا کې يو فکري انقلاب منځ ته راغی، د پرمختګ او رغونې شرايط دغو هېوادونو ته برابر شول. اما په خواشينۍ سره په همدې دوران کې، شرقي هېوادونه د مخ په ودې په لاره ورګډ نه شول او ځينو لانزولي لاره ووهله. که څه هم په دې هېوادونو کې ځيني

وختونه مؤقتي حرکتونه را پیدا شول، خو په دې علت چې د ټولنې له عمومي فرهنګ سره یې پوره سمون نه درلود د حمایت وړ ونه ګرځېد، ځکه په چټکۍ سره له منځه لاړل. پخوا د هېوادونو د پراختیا موندنې معیار سرانه عاید و. له سرانه عاید څخه مقصد د هر هېواد د داخلي ناخالصه عاید وېش دی، خو په دې برخه انتقادونه وشول چې د هېوادونو د پراختیا موندنې معیار اقتصادي وده یا د سرانه عاید لوړوالی نه دی. ځکه که لوړ سرانه عاید د پراختیا موندنې معیار وبولو نو باید د کویټ، عربي متحده اماراتو او قطر هېوادونو د لوړ سرانه عاید په درلود لو سره باید د آلمان، فرانسې او انګلستان په پرتله ډېره پراختیا موندلې وای.

## اقتصادي پراختیا څه ته وایي؟

اقتصادي پراختیا د تولیدي ظرفیتونو د زیاتوالي او د فزیکي، انساني او اجتماعي ظرفیتونو سره په خوا کې ودې ته وایي. په اقتصادي پراختیا کې د ټولنې اقتصادي او ټولنیز بنسټونه تغییر کوي چې د دې تغییر او تحول پایله په لومړۍ درجه کې:

- د اقتصادي نابرابریو راټیټول.
- د ټولنې د تولید وېش او لګښت په برخه کې د تغییر راوستل.
- د تولید د کمې ودې په څنګ کې د ټولنیزو بنسټونو پرمختګ.
- ښایي نظریات بدلون ومومي.
- په دوامداره توګه له موجوده سرچینو څخه د ګټې اخیستلو ځواک ورځ په ورځ زیاتیږي او هره ورځ یو نوښت څرګندیږي.

باید د دوو مفهومونو **اقتصادي ودې او اقتصادی پراختیا** تر منځ توپیر وشي: اقتصادي وده یوازېنۍ ده چې مقصد له هغه نه په ټولنه کې د شتمنۍ او تولید زیاتوالی دی او معمولاً د سرانه عاید له مخې اندازه کیږي، په دې بنسټ وده یو کمي مفهوم دی. که په یوه ټولنه کې د تولید کچه په یو څرګند پړاو کې نسبت پخواني پړاو ته زیاته شي، وایو چې دې ټولنې وده کړې ده.

دا زیاتوالی کیدای شي د زراعتي محصولاتو د سطحې، د نویو کارخانو تأسیس، د موجوده او فعلي تولیدي مرکزونو پراختیا او داسې نورو پایله وي. اقتصادي پراختیا د تولید د ډېرښت تر څنګه په بله پدیده هم دلالت کوي او هغه کیفي مفهوم دی. که چېرته ټولنه خپله تولیدی وړتیا د

ښو طريقو او مناسبې ټکنالوژۍ څخه په ګټې اخيستلو سره زياته کړي او له خپلو سرچينو څخه په ښه توګه استفاده وکړي، نو وايو چې د پراختيا په لاره کې يې قدم ايښی دی. څرنګه چې ليدل کيږي وده د پراختيا يوه برخه ده. په حقيقت کې له امکاناتو او سرچينو څخه بهتره ګټه اخيستل د توليد د زياتيدو سبب ګرځي خو د توليد هر زياتوالي ته پراختيا نه شو ويلای، د مثال په توګه د توليد زياتوالی چې د زراعتي محصولاتو په پايله کې رامنځ ته کيږي وده ده. د توليد زياتوالی چې د طريقو د ښه والی، د اصلاح شويو تخمونو د استعمال، د نباتي او زراعتي آفاتو ضد درملونو څخه د استفادې او د پرمختللې ټکنالوژۍ په پايله کې منځ ته راځي اقتصادي پراختيا ده. يو بل ټکی چې بايد هغه ته پاملرنه وشي دا دی چې له ودې څخه لاس ته راغلې پايلې لنډ مهاله وي، خو له پراختيا څخه لاس ته راغلې پايلې کېدای شي اوږد مهاله وي او په اوږده موده کې لاس ته راځي. له همدې کبله ويل کيږي چې پراختيا يو اوږد مهاله بهير دی.

## اقتصادي پراختيا دوه اصلي موخې لري

اول- د شتمنۍ ډېرښت، د ټولنې د خلکو هوساينه، د نيستۍ د جرړو ايستل.

دويم- د کار يا بوختيا ايجادول چې دا دواړه موخې عدالت رامنځ ته کوي. اقتصادي پراختيا ته پاملرنه په پرمختللو او وروسته پاتې هېوادونو کې توپير لري. په پرمختللو هېوادونو کې له پراختيا څخه اصلي هدف د خلکو د هوساينې او د ژوند د امکاناتو زياتوالی دی. په داسې حال کې چې په وروسته پاتې هېوادونو کې زياتره د نيستۍ د جرړو ايستل او د ټولنيز عدالت زياتوالی د پراختيا اصلي هدف جوړوي. هغه پوښتنې چې د يوه هېواد د اقتصادي پراختيا په اړه زموږ په وړاندې درېږي هغه د نيستۍ، نابرابرۍ او بې روزګارۍ اندازه ده چې معلومه شي په کومه کچه کې ده؟ که چېرته دا مسلې له ډېرې جګې کچې څخه ډېرې ټيټې کچې ته راښکته شي، نو ويلای شو چې نوموړي هېواد د پراختيا لاره وهلې ده. هرکله که د دې اساسي ستونزو دوه مسلې او يا درې واړه (نيستۍ، نابرابرۍ او بې روزګارۍ) زياتې شي او شدت پيدا کړي نهشو کولای چې د دې کار پايلې ته پراختيا ووايو، که څه هم سرانه عايد دوه برابره شوی هم وي. څرنګه چې وويل شول هغه هېوادو نه چې د پراختيا په حال کې دي، د اقتصادي پروګرام يو له اصلي موخو څخه

يي د نيستۍ له منځه وړل او د ټولنې عامو خلکو ته د ټولنيزې هوساينې برابرول دي. د ټولنيزې هوساينې معنا، د ټولنې د وګړو په جسم او روح کې د سلامتۍ راوستل، د پوهې رواجول او د ټولنيز قانون ماتونې مخنيوی دی. په دې ډول ټولنيزه هوساينه هغه وخت رامنځ ته کېدای شي چې نيستي له منځه لاړه شي او نابرابري کمه شي. کله چې مو غوښتي وي د يوې ټولنې د ټولنيزې هوساينې کچه معلومه کړو، نو لازمه ده چې د ټولنې د نيستۍ له وضعيت او د عايد له وېش نه ځان خبر کړو. ځکه چې که په ټولنه کې نيستي کمه او د عايداتو وېش مناسب وي، د هغې ټولنې هو ساينه به ډېره وي.



## د لوست تکرار

- ..................................................................................................
- ..................................................................................................
- ..................................................................................................
- ..................................................................................................
- ..................................................................................................



## پوښتنې

۱- پخوا د هېوادونو پراختيا د کومو معيارونو له مخې معلومېدله؟

۲- اقتصادي پراختيا تعريف کړئ او وواياست چې پراختيا په ټولنه کې د کومو بدلونونو لامل کېږي؟

۳- د اقتصادي پراختيا موخې کومې دي؟

٤- اقتصادي پراختيا او اقتصادي وده څه توپير لري؟

٥- له کومو طريقو او لارو څخه استفاده وشي چې هېواد د پراختيا په لورګامونه واخلي؟

٦- د ټولنې په اقتصادي جوړښت کې له بدلون سره د ټولنې په ټولنيز جوړښت کې کوم بدلونونه راځي؟



## کورنۍ دنده

تاسې هر يو په خپله سيمه کې هغه کارونه ګورئ چې د پراختيا ځرګندوونکي دي او هغه کارونه چې د ودې ځرګندوونکي دي، په يو لېست کې وليکئ او وروسته بيا خپل لېست د خپلو ټولګيوالو له لېست سره پرتله کړئ.

# د پراختیا او وروسته پاتیوالي عوامل



## پرتله يې کړئ

کيدای شي ستاسې په سيمه کې داسې کورنۍ موجودې وي چې هغوی مادي ستونزې ونه لري او هڅه کوي چې خپل او د کورنۍ ژوند نور هم ښه کړي. د هغه ترڅنګه داسې کورنۍ هم شته چې ژوند يې له نيستۍ او محروميت سره تېرلی دی. آيا پوهېږئ د دې دوه کورنيو تر منځ د توپير علت څه شی دی؟

هو! په دې نړۍ کې دوه ډلې خلك ژوند کوي. لومړۍ ډله کوچنۍ ډله ده چې په هوسا خيال او له مادي ستونزو څخه ليرې د خپل او د خپلو اولادونو د ښه ژوند سمبالولو په هڅه کې دي. دويمه ډله هغه انسانان دي چې خپل ژوند له نيستۍ او محروميت سره جوخت پرمخ بيايي. دا خلك چې د ټولې نړۍ مخ په زياتيدونکی نفوس تشکيلوي، د ژوند کولو لپاره له ستونزو او کړاوونو سره لاس او ګريوان دي. د هېوادونو په کچه، لومړۍ ډله د هغو ټولنو جوړونکې ده چې په اصطلاح کې هغو ته **پرمختللي** هېوادونه وايي او دويمه ډله وروسته پاتې هېوادونه تشکيلوي. څرنګه چې وويل شول د اقتصادي پراختيا بحث له اوولسمې او اتلسمې پېړۍ را په دې خوا په اروپايي هېوادو کې مطرح شو. په دې هېوادو کې د صنعت او ټکنالوژۍ د پرمختګ او د هغوی

له خوا د ضعیفو هېوادونو د بازارونو د ولکه کولو سره یو ځای د دې سبب شو چې په یوه لنډه موده کې د پرمختللو او وروسته پاتې قطبونو ترمنځ واټن زیات شي او دوه ډوله هېوادونه په نړۍ کې څرګند شي: پرمختللي او وروسته پاتې هېوادونه.

## پراختیا موندلي هېوادونه کوم دي؟

د تعریف له مخې (پراختیا موندلي) هېوادونه هغه هېوادونه دي چې په بشپړه توګه صنعتي شوي وي او د یو پیچلي اقتصادي سیستم لرونکي وي. صنعتي شوي هېوادونه هغه هېوادونه دي چې له ۲۵٪ څخه زیات ناخالص داخلي تولیدات یې صنعتي فعالیتونه تشکیل کړي. په حقیقت کې د اقتصاد محور یې صنعتي تولید (صادرات) وي، خو هغه څه چې د ډېر اهمیت وړ دي (په کال کې تر ۱۰۰۰۰ډالرو زیات) د سرانه عاید لوړ والی دی.

## وروسته پاتې هېوادونه کوم دي؟

له دویمې نړیوالې جګړې وروسته او د عمومي نظم له راتلو سره سم په نړۍ کې (د ډېرو تر استعمار لاندې هېوادونو د خپلواک کیدو تر څنګه) د پراختیا موندلو او وروسته پاتې هېوادونو تر منځ دا خلا په ښه توګه څرګنده شوه او د نړۍ مختلف هېوادونه یې له دې اساسي پوښتنو سره مخامخ کړي دي چې: **ولې په نړۍ کې ځینې خلک په لوږه او مطلقې نیستۍ کې ورځې تېروي او ځینې خلک په کامله هوساینه کې؟** له همدې وروسته په نړۍ کې پراختیا منځ ته راغله. نن ورځ د دریمې نړۍ د هېوادونو لپاره د **وروسته پاتې** د تعبیر پر ځای **د پراختیا په حال کې** اصطلاح څخه کار اخیستل کیږي.

### فکر وکړئ او ځواب ورکړئ

**ستاسې په فکر! ولې ځینې هېوادونه شتمن او ځینې نور وروسته پاتې دي؟**

ښایي د یوه هېواد لرغونتوب او عمر د هغه د نیستمنۍ او شتمنۍ علت وي. خو که چېرته لرغونتوب د دې خبرې دلیل وي نو ولې د مصر هېواد د درې زره کلونو تاریخي لرغونتوب سره

سره یو نیستمن او وروسته پاتې او د کاناډا او امریکا هېوادونه چې له ۱۵۰کالو څخه زیات عمر نه لري، اوس د پرمختللو او پراختیا موندلو هېوادونو له جملې څخه شمېرل کیږي.

د طبیعي صنایعو او د استحصال وړ معدنونو اندازه هم نه شي کولی د یوه هېواد د نیستمنۍ او شتمنۍ دلیل شي، ځکه جاپان یو داسې هېواد دی چې له ۸۰ سلنه زیات غرونه دي او مناسبه خاوره نه لري، خو بیا هم د خپلې اړتیاوړ وریجې له محدودې زراعتي ځمکې څخه پوره کوي، خام ارزان بیه مواد د نړۍ له نېستمنو هېوادونو څخه را واردوي، د صنعتي محصولاتو او د قیمتي توکو په توګه یې صادروي چې له امریکا وروسته دویم لوی صنعتي قدرت بلل کېږي. ډېر زکاوت، قوم یا نسب او د پوستکي رنګ هم نه شي کولی چې د هېوادونو په پرمختګ او وروسته والي کې رغنده رول ولوبوي، ځکه چې د نیستمنو او شتمنو هېوادود ډیپلوماتیکو کړو وړو په څېړلو سره دا جوته شوې ده چې کوم د پام وړ توپیر په هوښیارۍ او فکر کې نه لیدل کېږي.

**نو توپیر په څه کې دی؟** یو لړ لاملونه شته چې د پراختیا نه موندنې علایم او آثار ګڼل کېږي، لکه: د پانګې کموالی، د متخصصو او ماهرو بشري ځواکونو کموالی چې د وروسته والي لاملونه او نښې دي.

سربیره پردې په عمومي او کیفي توګه کولی شو چې د وروسته پاتې هېوادونو ګډ خصوصیات داسې ډلبندي کړو:

۱- د خلکو د ژوند د سطحې او کیفیت ټیټوالی.

۲- وزګارتیا، کم کار او د مزد د اندازې ټیټوالی.

۳- کرنیزو تولیداتو سره تړاو یا د لومړنیو موادو صادرات (تولیدي سرچینې).

٤- اقتصادي تړاو او په نړیوالو اړیکو کې زیانمن کېدل.

٥- نا مناسب سیاسي حکومتي جوړښت.

٦- ټولنیزه نابرابري.

۷- د منځنۍ طبقې کمزورتیا.

ځينې اقتصادپوهان د طبيعي سرچېنو کموالی، د پانګې نه تشکېلېدل او په کافي اندازه د سپما نشتوالی او داسې نور د هېوادونو د وروسته پاتېوالي علت بولي. رښتيا چې د طبيعي سرچينو زياتوالی او د سرمايې سرچينو ته لاسرسی په اقتصادي پراختيا اغېز اچوي، خو د پام وړ ټکی دا دی چې: جنوبي امريکا، لاتيني امريکا، افريقايي او آسيايي هېوادونه د طبيعي سرچينو او معدني زېرمو له اړخه شتمن دي، د مثال په توګه: د منځني ختيځ د نفتو او ګازو سترې زېرمې يا په لاتينه امريکا او جنوبي امريکا کې د مسو او سربو سرچينې او په افريقا کې د پاملرنې وړ د طلا او نـقرې د زيرمو نومونه اخستلای شو چې سره له دې هم پرمختللي هېوادونه نه بلل کېږي. له پورتنيو معلوماتو څخه داسې پايله اخلو چې په پراختيا موندونکو او پراختيا نه موندونکو هېوادو د نړۍ وېشل د طبيعي سرچينو نابرابره وېشنه او د نفوس ډېروالی نه دی. ځينې پوهانو يو لړ محدودوونکي عوامل لکه: **د نفوسو نا منظمه وده د ما هر انساني ځواک کموالی، د سرمايې او مالي امکاناتو کمښت د پراختيا په حال کې هېوادو د وروسته پاتې کېدو عوامل ګڼي.**

نن دا ثابته شوې ده، په کومه اندازه چې طبيعي سرچينې په پراختيا کې اهميت لري، هومره علم او ټکنالوژي هم د اهميت وړ دي. پرمختللې ټکنالوژۍ کولی شي خپله په يوازې ډول په نسبي توګه د هېوادونو لپاره ګټوره تمامه شي، د بېلګې په توګه: جاپان، کوريا او سنګاپور چې کافي طبيعي سرچينو نه لري، خو د صنعت له پلوه په ډېرو مهمو لاس ته راوړنو بريالي شوي دي. په داسې حال کې چې د ارجنټاين په څېر هېواد او ځينې نور هېوادونه د ډېرو شتمنو زېرمو او طبيعي سرچينو له درلودلو سره سره د پراختيا په حال کې هېوادونه دي.

افغانستان له پخوا نه تراوسه له انحطاط او ورسته پاتېوالي، څخه ځورېږي او هميشه د دې مسلې نه د خلاصون د علتونو په لټه کې دی. سياسي استبداد د ادارې او مديريت کمزوري بې ځايه غوښتنې، مخالفتونه، د سواد د کچې ټيټوالی، په لويو قدرتونو پورې تړل، د قومونو

ډېروالی، ټولنیزه ګډوډي، د استعمار ګرو لاسوهنه او همدارنګه د ګاونډیانو متضادې ګټې د افغانستان د وروسته پاتېوالي مهم عوامل تشکیلوي.

په فرهنګي، سیاسي او اقتصادي ساحو کې د وروسته پاتېوالي ډېر مهم کورني عوامل دا دي: استبداد، داخلي جګړې، ناپوهي د مالي او پانګي امکاناتو کمښت او نور. بهرني عوامل چې یو ډول نه یو ډول یې د افغانستان په وروسته پاتېوالي کې اغېزناک نقش درلود، هغه استعمارګر هېوادونه وو چې د خپلو اقتصادي او سیاسي ګټو لپاره یې په دوامداره توګه د افغانستان د سیاسي تاریخ په اوږدو کې د جنګ اوږدیدل، نا امني، کشمکش او په افغانستان کي یې د یو ضعیف او پیپلي دولت د مستقر کولو سیاست تعقیب کړی دی. بالاخره د سیمې مهم هېوادونه او ګاونډیان او د هغو متضادې ګټې د داخلي جنګونو، ناامنیو او په عمومي توګه د افغانستان د انحطاط او وروسته پاتېوالي سبب شول. باید ووایو چې زموږ په ټولنه کې د وروسته پاتېوالي او نیستئ یو عامل له فرهنګي نعمتونو څخه د محرومو قشرونو بې برخې کیدل دي، ځکه چې:

- له فرهنګي نعمتونو څخه د محرومو طبقو برخمن کیدل د ټولنې د ودې سبب کېږي.
- په پایله کې د ټولنې فرهنګ شتمن کېږي.
- فرهنګي شتمني د هوښیارئ او نوښت ساه د ټولنې په وجود کې نغاړي.
- کله چې ټولنه نوښتګره وي تفکر په ټولنه کې ژوندی کېږي.
- په یوه ټولنه کې د تفکر په ژوندي کیدو سره ټولنه هېڅ وخت د نیستئ خوا ته قدم نه ږدي.

په دې ډول ټولنه د ټولو اقتصادي، سیاسي، اجتماعي او فرهنګي ستونزو د حل په اړه د ښه او سم تشخیص خاونده کیږي.



## د لوست تکرار

- ..............................................................................
- ..............................................................................
- ..............................................................................
- ..............................................................................
- ..............................................................................



## پوښتنې

۱- پراختیا ته د رسیدونکې هېواد او د وروسته پاتې هېواد تر منځ توپیر څه شی دی؟

۲- د وروسته پاتې هېوادونو ګډې ځانګړتیاوې بیان کړئ.

۳- د پرمختللو هېوادونو ګډې ځانګړتیاوې بیان کړئ.

٤- کوم عوامل د یوه هېواد په پرمختیا او وروسته پاتېوالي کې رول لري؟

٥- زموږ د هېواد د وروسته پاتیوالي کورني عامل څه شی دی؟

٦- زموږ د هېواد د وروسته پاتیوالي بهرنی لامل څه شی دی؟



## کورنۍ دنده

په هغه سیمه کې چې تاسې ژوند کوئ نیستي شته او که نه؟ که وي د دې نیستۍ په اړه څېړنه وکړئ او دا څېړنه مو د نورو ټولګیوالو سره مقایسه کړئ.

# پراختیا او د ژوند چاپېریال



## خبرې پرې وکړئ

انځور ته وګورئ او د هغه په اړه په ټولګي کې خبرې وکړئ.

۱- آیا کوم وخت د هغو خځلو له څنګه تېر شوي یاست چې د سرک په خواکې اچول شوې وي، هغه وخت تاسې ته څه احساس پیدا شو؟

۲- که چېرته بازار ته د کوم شي د پیرودلو لپاره تللي یاست، نو هرومرو به تاسې هلته ډېر موټرونه، د خلکو ګڼه ګوڼه، دوکانونه او کراچۍ لیدلي وي، آیا کوم شیان تاسې هلته ولیدل چې د ژوند د چاپېریال د ککړتیا لامل شوي وي؟

په تېر لوست کې مو ولوستل چې پراختیا د نیستۍ او نا انډولۍ له منځه وړلو او د صنعتي کېدو، په ټولنیزو اړیکو او سیاسي چارو کې د عدالت پر بنسټ د خلکو د ګډون د زیاتوالي په معنا ده. په دې درس کې د ژوند چاپېریال تعریف او اهمیت او د ژوند د چاپېریال او پراختیا ترمنځ دوه اړخیزې اغېزې لولئ.

## د ژوند چاپېریال څه شی دی؟

ټول چاپېریال چې په هغه کې ژوند دوام لري، د ژوند چاپېریال نومیږي. د بېلګې په توګه د اوبو ډنډ، یو ښار، اوقیانوس، بېدیاوې، غرونه او داسې نور دا ټول د ژوند د چاپېریال له ډولونو څخه دي. د ژوند په چاپېریال کې ژوندي موجودات د بې ساه شیانو لکه: خاوره، اوبه، ګازونه او نورو موجوداتو سره یوځای شتون لري. ژوندي موجودات پخپلو کې او همدارنګه د بې ساه موجوداتو سره متقابلې اړیکې ساتي. دا اړیکې د ژوند د چاپېریال د دوام او بقا لپاره اړینې دي. د ژوند چاپېریال په دې ډول هم تعریف شوی دی: چاپېریال هغه فضا ده چې ټول فزیکي، بیولوژیکي، ټولنیز، سیاسي او نور هغه شرایط پکې شاملیږي چې ټول ژوندي موجودات پکې ژوند کوي او د هغو د روابطو مجموعه جوړوي. په یو بل تعریف کې راغلي دي: د ژوند چاپېریال د خارجي

اوضاعواو احوالو مجموعې ته وايي چې د ژونديو موجوداتو په وده، پراختيا او بقا باندې اغېز لري. د ژوند چاپېريال د مفهوم د ښه درک لپاره اړينه ده چې له طبيعي سرچېنو او د هغو د استفادې له طريقو سره آشنا شو.

## طبيعي سرچېنې څه شی دي؟

په عمومي توګه هغه شيان دي چې خدای (جَلَّ جَلاَلُه) په طبيعت کې پيدا کړي دی او ژوندي موجودات ترې ګټه اخلي. موږ د غره له تيږو څخه په کار اخيستلو خپل ځان ته کور جوړو، له معدنونو څخه د هر ډول فلزاتو په را ايستلو سره د اړتيا وړ لوښي او وسايل جوړوو، له وښو او ځناورو څخه د اړتيا وړ پوښاک او خواړه برابروو.

## طبيعي سر چېنې په درې ډوله دي

۱- **نه رغيدونکې سرچېنې**: دا ډول سرچينې د ګټې اخيستلو په بهير کې کمېږي او بالاخره ختميږي لکه: د ډبرو سکاره، مالګه، تيل، ګاز او نور معدنونه.

۲- **بيا رغيدونکي سر چېنې**: د طبيعي منابعو يو بل ډول دی چې د معقولې او مناسبې ګټې اخيستنې په پايله کې نه ختمېږي او د بيارغونې وړ دي. لکه: کبان، ځنګل، واښه او داسې نور.

۳- **نه تماميدونکې سرچېنې**: چې د هغو اندازه په طبيعت کې ډېره زياته ده، لکه: اوبه، هوا او انرژي.

په بشري نړۍ کې د انسانانو د اړتياوو وده او زياتوالی د ډول او کيفيت له نظره د طبيعي سرچېنو له ظرفيت سره يوشان نه دی.

يو له هغو موضوعاتو چې له طبيعي سرچينو څخه د استفادې د ښه مديريت په کولو کې بايد په نظر کې ونيول شي، هغه د ځمکې د تحمل وړ ظرفيت (Carring capacity) دی.

## د تحمل وړ ظرفيت څه شی ته وايي؟

هغه اندازه خلک چې په يو چاپېريال کې ژوند کوي او د ژوند هغه چاپېريال په دوامداره توګه د هغوی اړتياوې پوره کړای شي، د تحمل وړ ظرفيت ورته ويل کېږي، که چېرته د ژوند له چاپېريال نه د غير معقولې ګټې او د نفوس د زياتوالي په نتيجه کې له زغم وړ طاقت څخه څه ورزيات شي ښکاره ده چې طبيعي منابع هغوی ته کفايت نه کوي او په چټکۍ سره ختميږي او زيان وينې تردې چې کيدای شي بيا د رغونې وړنه وي.

**د نړيوال ژوند د چاپېريال له مهمو موضوعاتوسره بلدتيا پيدا کړئ،**

**بحث پرې وکړئ**

- **ستاسې په اند کوم شيان د ژوند د چاپېريال د ککړتيا سبب کېږي؟**
- **آيا دا خطرونه او زيانونه يوازې يو ملک ته اوکه ټولو ملکونوته متوجه دي؟**



د بشر د تمدن پرمختګ، معاصرې ټکنالوژۍ او د نفوسو ډېروالي، ننۍ نړۍ په ځمکه، هوا او اوبو کې په ککړتیا اخته کړې ده. چې د ځمکې د سر د اوسیدونکو ژوند یې له لوی ګواښ سره مخامخ کړی دی.

کوم موضوعات چې په دې برخه کې ورته اشاره کېږي یوه بې سرحده ساحه لري. یعنې دا ګواښ یوه هېواد ته متوجه نه دی او د هغو د حل لپاره د هېوادونو ترمنځ تفاهم او مرستې ته اړتیا ده.

## د ژوند د چاپېریال د ککړتیا او ګواښ لاملونه

۱- د ځمکې د تودوخې زیاتیدل (ګلخانه یې) ګازونه.

د ځمکې د تودوخې د درجې د لوړیدو له مهمو عواملو څخه یو د ګلخانه یې ګازونو زیاتوالی او د ضرورت وړ تنفسي هوا کموالی دی. د کاربن ډاي اکسایډ په ګاز کې زیاتوالی او ټول ورانوونکي ګازونه د صنعت د پرمختګ له امله دي چې په لویډلو کې یې نامطلوبو اغیزو ته پاملرنه ونه شوه. خو وروسته پوهان په دې پوه شول چې هغه ماشین آلات چې د سون د تیلو او په نورو غوړو باندې فعالیت کوي، خپله د کاربن ډای اکسایډ د ګازونو د تولید سبب کېږي. د دې ګازونو له حده زیاته برخه د ځمکې په شاوخوا راټولیږي. د دې ګازونو بې حده زیاتوالی او تولیدېدل د ځمکې په چاپېریال کې د ګاز د یو پېړ قشر سبب ګرځي چې د ګل خانو د پلاستیک پوښ په څېر د تودوخه د ځمکې سطحې ته نږدې ساتي او د ګلخانې په څېر د ځمکې د هوا د تودیدلو سبب ګرځي.

## ۲- د ازون د قشر یا سطحې کمېدل

دویمه ستونزه چې د اندېښنې وړ ده هغه د ازون قشر ته چې د ځمکې د ساتنې لپاره د هغې په شاوخواکې ځای لري زیان رسیدل دي. د ازون قشر تقریباً په ۲۴ کیلو متری کې د ځمکې په سر د دې سیارې په شاو خوا چاپېر شوی دی او ماورا بنفش د وړانګو په جذبولو سره ځمکه او د هغه ټول موجودات له زیان اړوونکو وړانګو څخه ساتي. هغه ګازونه چې له صنایعو، وسایطو او نورو ماشینونو څخه د ګټې اخیستنې په پایله کې تولیدېږي، د ازون په قشر ورانوونکی او ویجاړوونکی اغېز لري او حتی د ازون د قشر په سطحه باندې یې د یو سوري جوړولو امکانات برابر کړي دي.

## ۳- د دښتو پراختیا او د حاصل خېزې خاورې کمښت

د ګټې وړ ځمکې د نړۍ په ګوټ ګوټ کې د شاړېدو او له منځه تللو له خطر سره مخامخ دي.

علمي څېړنو هم دا جوته کړې ده چې له ۱۰ تر ۱۱ په سلنه د نړۍ حاصل ورکونکې خاوره په هغه کچه ککړه شوې ده چې د هغو بیرته رغونه تقریباً ناممکنه ده.

### ۴- د هوا ککړتیا او اسیدي بارانونه

اسیدي بارانونه هم د هوا د ککړتیا یو عامل ګڼل کېږي. هغه اکسایډونه چې د سون د تېلو له مصرف او سوځولو نه حاصلیږي. په هوا کې د اوبو له موجود بخار سره یو ځای کېږي او داسې اسیدونه تشکیلوي چې له وریځو سره د ځمکې په سر حرکت کوي، کله چې وریځې په باران تبدیلې شي دا اسیدونه د ځمکې مخ ته راګرځي او د ځنګلونو، ګیاوو او حتی د انسانانو په لاس جوړ شویو ساختمانونو ته د زیان او د اوبو د سرچېنو د ککړتیا سبب ګرځي.

### ۵-د زهري (سمي) ځځلو غورځول

د صنعتي چارو له امله، یو ډېر شمېر صنعتي زهري ځځلې او اضافي مواد منځ ته راځي چې د خښېدو په پایله کې د چاپېریال د ککړتیا سبب ګرځي. زهري فلزات د ژوندانه چاپېریال او د خلکو ژوندانه ته زیان رسوي. د زهري موادو غیر اصولي انتقال او د هغو په سمه توګه نه دفع کول هم د ژوندانه د چاپېریال له ستونزو څخه شمېرل کېږي.

### ۶- د ځنګلونو له منځه وړل

د ځنګلونو چټک تخریب او له منځه تلل لاندې ژیو پولیټیکي او بې سرحده اغېز درلودای شي:

**الف**: د ځنګلونو د پوښښ له منځه تلل د خاورې د چټک شاړېدو، د رودونو او اوبو د سرچېنو د ککړتیا لامل ګرځي.

**ب**: د کاربن ډای اکسایډ د جذب او اکسیجن د تولید اندازه او ظرفیت کمېږي. او د ځمکې تودوخه زیاتیږي.

### خبرې پرې وکړئ

ستاسې په فکر! آیا د دې ټولو خطرونو مخنیوی کولی شوکوم چې بشریت له هغه سره مخامخ دی؟ څنګه؟ ستاسې مسؤولیت د ژوند د چاپېریال پر وړاندې څه دی؟

په اوسمهال کې دوامداره پراختیا په سیاسي برخو او هم په څېړنیزو برخو کې په پراخه توګه د نړۍ په سطحه د استفادې وړ ګرځي.

### دوامداره پراختیا څه شی ده؟

بې له دې چې د راتلونکي نسل اړتیاوو ته زیان ورسیږي، د خپلو اوسمهالو اړتیاوو پوره کولو ته دوامداره پراختیا وايي. په ساده ژبه، نننی انسانان د خپلو اړتیاوو د پوره کولو لپاره باید د طبیعت له

سرچینو څخه په معقوله توګه ګټه واخلي، ځکه چې راتلونکی نسل هم له دې سر چینو څخه د ګټې اخیستلو حق لري. په دې تعریف کې د نیستی او طبیعي سرچینو ته د لاسرسي په اړه د نن او راتلونکي نسل تر منځه د عدالت رعایت کولو په اړه فکر نغښتی دی او خلک یې له طبیعت نه د معقولې استفادې، د ژوند د چاپېریال او د ژوندیو موجوداتو او ځناورو ساتنې ته هڅولي دي.

الله (جَلَّ جَلالُه) انسان له خاورې نه پیدا کړ او په هغه کې یې روح واچاوه نو انسان او د انسان د ژوند او حیات ټولې پدیدې له ځمکې او خاورې نه پیدا دي او خاوره د ځمکې پوټکی ( قشر) دی. الله (جَلَّ جَلالُه) ټول موجودات او شیان په یوه پېچلې اړیکه کې د انسان لپاره پیداکړل او انسان یې د دوی په استفاده کې له اسراف کولو نه منع کړ. د اسلام په مقدس دین کې درې شیان مطلوب دي.

۱- په هغو سرچېنو او شتمنیو چې الله (جَلَّ جَلالُه) په ځمکه، آسمان، د ځمکې په تل او په بحرونو کې د انسان د استفادې لپاره پیدا کړي دي،د الله (جَلَّ جَلالُه) د شکر ادا کول.

۲- په بحر، ځمکه او آسمان کې له شتمنیو او سرچېنو څخه په دوامدره، همېشه سنجیده او اسراف نه کوونکې توګه ګټه اخیستنه.

۳- د الله (جَلَّ جَلالُه) له نعمتونو څخه له هر ډول چټلی، نجاست او کثافت نه پرته، پاکه ګټه اخیستنه چې نظافت د شریعت مطلوب او د ایمان جز دی. که چېرته انسان له دې سرچینو څخه معقوله استفاده ونه کړي، دا عمل د دې لامل کېږي چې استفاده کوونکي له خپلو اړیتاوو څخه زیات او د نورو د اړتیاوو په نظر کې نیولو څخه پرته ترې استفاده وکړي چې دا عمل اسراف دی او اسراف حرام دی. د دې لپاره چې یوازې د نن ورځې د انسان پرمختیا او سوکالي د اسلام مقصدنه دی بلکې د اسلام مقصد له نن څخه د قیامت تر ورځې د انسان ترقي او پرمختګ دی. انسان پراختیا ته اړتیا لري چې خلک هم د انساني شرایطو ښه والي ته او هم د ژوند د چاپېریال د ساتنې یعنې د طبیعت د تولید قدرت او د تنوع د ساتنې ته پاملرنه ولري. چې د دې کار په عملي کولو سره ځینې نظریات د پراختیا او د ژوند د چاپېریال په اړه پای ته رسېږي. داسې نظریې چې ګوندې دا دوه یو د بل په مقابل کې دروي، خو موږ باید دا ومنو چې دا دواړه اصلونه (د ژوند چاپېریال او پراختیا) د یوه بهیر دوه نه بېلدونکې برخې دي.

کومې چارې چې په موږ پورې اړه لري چې د چاپېریال د پاک ساتلو لپاره یې سرته ورسوو ځینې یې په لاندې ډول یاد وو:

- موږ باید نیالګي کښېنوو، کبله وکړو او چاپېریال پاک وساتو.

- خځلې او کثافات باید په یو ټاکلي ځای کې وغورځوو.
- د ونو او پارکونو څخه ښارنه او ساتنه وکړو. هغو ته اوبه واچوو او له ماتولو نه يې ډډه وکړو.
- په خوړونو، پارکونو او سرکونو کې کثافات وانه چوو.
- انرژي باید ډېره او بې ځایه مصرف نه شي او د بې کیفیته تیلو او د سون موادو له استفادې نه چې د ژوند چاپېریال ککړوي ډډه وکړو.
- هغه د بیا استفادې وړ شیان چې باید لرې واچول شي، د کوچنیانو لپاره ترې د لوبو شیان جوړ کړو.
- د پلاستیکي کڅوړو پر ځای له کاغذي او ټوکریزو کڅوړو ګټه واخلو او یا که له پلاستیکي کڅوړو څخه استفاده کوو، وروسته له استفادې هغه باید د خځلو په ټاکلي ځای کې وغورځوو.
- ژوي ونه زورو او داسې نور.



## د لوست تکرار

- ..........................................................................................
- ..........................................................................................
- ..........................................................................................



## پوښتنې

۱- د ځمکې د زغم اندازه څه شی ده؟ ويې ليکئ.
۲- که له طبيعي سرچينو څخه په معقوله توګه استفاده ونه شي، څه به پېښ شي؟
۳- نه رغيدونکي طبيعي سر چينې کومې دي؟ توضيح يې کړئ.
٤- ولې ويل کېږي چې پراختيا د ژوند د چاپېريال د ککړېدو لامل ګرځي؛ آيا دا سمه ده؟
٥- د ژوند د چاپېريال ککړتيا د انسانانو ژوند ته څه زيان رسوي؟
٦- د ځمکې د کرې توديدل (ګلخانه يي اغېز) څه شی دی؟ بيان يې کړي.
٧- د ځمکې د تودوخې د درجې لوړوالی په اقليم کې کوم تغييرات راولي او د کومو پيښو لامل کېږي؟



## کورنی دنده

څلور هغه کارونه چې تاسې يې د ژوند د چاپېريال د پاکوالي لپاره سرته رسولای شئ وليکئ او بيا يې د ټولګي پر وړاندې و لولئ.

# د څپرکي لنډيز

۱ - پراختيا په لغت کې د تدريجي پرمختګ، ځواکمنۍ او حتی لويوالی خوا ته د ودې کولو په معنا ده. همدارنګه پراختيا د پراخوالي په معناهم ده.

۲- د هر ډول پراختيا اساس فرهنګي پراختيا ده او له هغه ځايه چې د دولتونو اصلي موخه هر اړخيزې پراختيا ته رسيدل دي او د دې پراختيا بنسټ انسان دی، له دې کبله د دوامدارې او حقيقي پراختيا بنسټ به هم فرهنګي پراختيا وي.

۳- هغه شرايط او ټولنيز لاملونه چې د ودې او پراختيا په بهير کې د پاملرنې وړ دي عبارت دي له:

۱- د مطلقې نيستۍ د له منځه وړلو په مقصد لاس په لاس، فوق العاده او بېړنۍ مرستې چې په خواشينۍ سره د نفوسو ډېره برخه ورسره لاس او ګريوان ده.

۲- د اساسي اړتياو، لکه: خوړو، استوګنځی، د سون موادو، کاليو او ځينو ټولنيزو اړتياوو، لکه: د بشري حقونو زده کړې او د دندې لاسته راوړلو لپاره د لارې هوارول او په ټولنيز ژوند کې د سياسي او ټولنيزو موقفونو او نقشونو لاسته راوړل، د ټولنيزې هوساينې او عدالت راوستل دي.

۴- اقتصادي پراختيا: هغه پرمختګ چې د د توليدي،فزيکي، انساني او اجتماعي ظرفيتونو د زياتوالي سره يو ځايي وي، اقتصادي پراختيا بلل کېږي.

۵- ټول هغه چاپېريالونه چې هلته ژوند دوام لري، د ژوند چاپېريال ورته ويل کېږي.

۶- د ژوند د چاپېريال پاک ساتل او د اقليم د تغيير د مخنيوي لپاره هڅې د ټولو بنسټونو او د هېواد د هر وګړي مسؤوليت او دنده ده.